Kandahar. Kabul
Vol.15, No.2, Sawr 1353
(April 1973) May 74

# کندهار

## اطلاعات او کلتور

د ۱۳۵۳ لمریز کال
دوهمه گڼه

د تاسیس کال ۱۳۳۹



د افغانستان جمهوري بيرغ چي د افغان اولس د ملي افتخار
سمبول دی زموږ د ملي رهبر په لاس د جمهوري رياست
د ودانۍ د پاسه پورته کړه شو

# د افغانستان د جمهوري دولت ملي بیرغ زموږ د ملي مشر په لاس د جمهوري ریاست دودانۍ د پاسه پورته کړه شو

کابل د غویي ۱۹:

د افغانستان د جمهوري دولت ملي بیرغ د قرآن عظیم الشان په تلاوت او زموږ د ملي مشر د دولت د رئیس او صدر اعظم ښاغلي محمد داؤد په لاس د غویي په ۱۹

نیټه تر غرمې دمخه د لسو بجو په شاوخوا کې د لوړو مراسمو په ترځ کې چې موزیک جمهوري ملي سرود

ږغاوه د توپونو د ډزو سره یوځای د جمهوري ریاست د مقر د پاسه پورته کړه شو.

همدا راز په وزارتونو، مرکزي ادارو، ولایاتو، عسکري قطعاتو، ریاستونو او سرحدي

پوستو کې د جمهوري دولت د ملي بیرغ د پورته کولو مراسم د مرکز د مراسمو سره یوځای چې دراډیو

افغانستان د خوا په مستقیم ډول خپریدل د میشتانو، والیانو، د عسکري، پولیسو، ژاندارم،

او د سرحدي پوستو د قوماندانانو او رئیسانو د خوا زموږ د هیواد د اولس د خوښۍ او خوشحالۍ

په هر کنډ ولو سره پر ځای سول.

د جمهوري ارګ په دروازه کې د افغانستان د ملي بیرغ د پورته کولو په اوستره غونډه شروع

شوه او ور پسې د افغانستان د جمهوري انقلاب د ملي مشر ښاغلي محمد داؤد خپل ارشادات ګډونوالو

ته واورول.

زموږ د انقلاب لارښودونکي د خپلو ښنا داورولو وروسته

افغانستان د جمهوري دولت ملي بیرغ په داسې حال کې چې موزیک ملي سرود ږغاوه د توپونو د ډزو

د جټ الوتکو د الوتلو او د سپینو کوترو د خوشې کولو سره یوځای د جمهوري ریاست د ماڼۍ د پاسه

ورپاوه چې د حاضرینو په پرله پسې چکچکو او د ژوندی دې وي زموږ ملي لارښودونکی تل دې وي

افغانستان او تل دې وي جمهوریت په شعارونو بدرګه سو.

وروسته له هغه یو شمیر ماشومانو زموږ ملي مشر او ستر قاید ته د ګلانو ګیډۍ وړاندې

کړل او د میرمنو او لنۍ رئیسې د هیواد د جګړو طبقې به نمایندګۍ زموږ ملي لارښودونکي ته د جمهوري

بیرغ پورته کولو مبارکي وویل.

د باختر خبریال زیاتوي چې د دولت رئیس او صدراعظم ښاغلي محمد داؤد

وروسته تر هغه د حاضرینو د صفونو ترمنځ په ښکلو چکچکو او ژوندی دې وي زموږ ملي قاید لوړ دې وي د افغانستان د جمهوري

دولت ملي بیرغ د شعارونو په ورکولو تیر شول.

همدغه راز زموږ ستر لارښودونکی

ته د جمهوري ارګ په خوله کې د پوهنې زده کوونکو او د کابل د ښارګنې شمیر خلکو توده او په زړه پورې هرکلی

ووایه.

د جمهوري ریاست په ماڼۍ کې د جمهوري دولت د ملي بیرغ د پورته

کولو په مراسمو کې د صدارت عظمی مرستیال ډاکتر محمد حسن شرق د مرکزي کمیټې غړو، د کابینې غړو، لوی درستیز

د جمهوري دولت د اردو ځینو ورو جنرالانو، قاضیانو او په کابل کې او سیدو ولکو پښتونستانیانو برخه

درلوده.

د باختر خبریال زیاتوي چې د دولت رئیس او صدراعظم ښاغلي محمد داؤد

د سهار په لسو بجو جمهوري ارګ ته تشریف داوړه.

«پاته په ۲۴ مخ کې»

د جمهوريت د ملي بيرغ د پورته کولو په وخت زموږ د ملي رهبر د وينا متن

# د تاريخ ترخه درسونه بايد هير نه سي



زموږ د ملي مشر او د جمهوري انقلاب ستر رهبر ښاغلي محمد داؤد

ګرانو وروڼو او وطنوالو! وياړم چې د لوی او ستر خدای «ج» په مهربانۍ د افغانستان د نجيب ملت په نامه د لومړي ځل د پاره د دغه لرغوني خاورې د وياړ ډک په څو زره کلن تاريخ کې د خپل وطن د ملي او نوي جمهوري نظام دغه بيرغ چې زموږ د خلکو په اراده او د وطن پالونکو زامنو او د هغه د ميړني اردو په همت او سرښندنه د ۱۳۵۲ کال د سرطان په ۲۶ نيټه اعلام او تأسيس سوی دی، د جمهوري رياست د مقر د پاسه اوچتوم.

دغه ولسي نظام يعنې جمهوريت د يوه سړي او يا يوې خاصې طبقې موروثي مال نه دی، بلکه د افغانستان د نجيب ملت د هر وګړي مال دی او حق لري او حق به ولري هغه کسان چې د خپلې زمامدارۍ د پاره يې لايق او وړ وګڼي په خپله انتخاب او په خپله وټاکي.

د دغه پښتور نظام ساتنه او د هغه وياړنه بې له شکه د افغانستان د ملت هراړخيزه فداکاري او د ځانه تيريدل ايجابوي.

د تاريخ په شهادت د ژوندانه په مبارزه کې تل د تيري او استعمار په مقابل کې د بريالي يو او ضمناً مو د هغه د دسيسو او چلو له زيات تاوان ليدلی دی هر وخت چې استعمار د پرمختګ او تکامل د کاروان مخه د يوه ملت د پيرته پاتې کيدو په لته کې سوې دی هغه لومړنی او ډيره مهمه وسيله چې د هغه څخه يې کار اخستی دی د اشخاصو او طبقاتو ترمنځ د بې بيني او نفاق توليدول او د هغه د ملي يووالي په بنياد کې درز اچول دی.

د تاريخ ترخه درسونه بايد زموږ څخه هير نه سي د استعمار او استعمارګرۍ فکر لا هم زموږ په ټولنه کې شته. که يې په خپله ظاهري

ښه بدله کېږي ده خو په اصلي هدف کې باور نه کوم بدلون راغلی دی.

نو د افغانستان د هر وګړي او وطن دوست وظیفه ده چې د خپلې ملي بقا او نیکمرغۍ او د خپل

جمهوري نظام د ساتنې د پاره په هر څه کې چې ګوري، هر څه چې وینې او هر څه چې اوري د پاسنیو

حقایقو په رڼا کې تحلیل کې او د دوی قضاوت دې د واقعي او عاقلانه وي.

ګرانو دوستانو:

اوس زموږ د جمهوري نظام د عمر څخه نږدې لس میاشتې

تېرېږي په دغه موده کې موږ زیاتره شیان ولیدل زیاتره شیان مو واورېدل او زیاتره شیان مو

زده کړل کله چې زموږ ایمان او دیانت ته د شک او تردید په سترګه وکتل او

کله چې موږ داسې وګڼلو چې ایډیا لوژي نه لرو نو هغه څه چې موږ بشپړه خپل وطن ته د خدمت په لار کې

سرته د سولې دي بشپړه موږ او زموږ وجدان پوهېږي چې څه مو کړي دي او څه اراده د هغه قضاوت د هیواد د ا-

تلو نسلونو زماني او تاریخ ته پرېږدو خو هغو کسانو ته چې کله موږ په دې صفت او کله په هغه صفت

یادوي باید څرګنده کړم چې زموږ په نسبت د دوی تورونه او تېر مقولنه نه یوازې کاملاً غرضي او دروغ

دي بلکه د وطن پرستۍ ته توهین او د افغان نا سیونالیزم څخه ورا او مېړنتوب ته تحقیر دی.

ګرانو ورونو:

باور لرئ هغه انسانان چې ایمان او مسلک نه لري هیڅکله د

خپل وطن او ټولنې د پاره د سترو او یا ارزښته خدمتونو مصدر نه دي او نه به شي.

په دغو څو میاشتو کې چې پر ضد او نقیض نشرات کله موږ د جریدو او راډیو ګانو د لارې او کله مو د پا-

کستان د مسئولو خلکو د ویناو د لارې زموږ او وطن په نسبت او د افغانستان د مناسباتو په باب وا-

ورېدل لکه څنګه چې د پاکستان صدر اعظم ښاغلي بوګرو په لاهور کې په خپله وروستۍ وینا کې ویلي دي:

چې پاکستان د افغانستان د حکومت سره خبرو ته تیار دی څو معلومه شي چې د دواړو د هیوادو ترمنځ

عادي روابط د ملي خود مختیاري او د ملکي د تمامیت په اساس ټینګېدای شي او که نه؟

پوهېږم د هغو کسانو د نظره چې په ډیپلوماسۍ ژبه پوهېږي د دغو جملو مفهوم پټ نه شي پاتې کېدای

خو ولس خپلو خلکو ته ساده او په عام فهمه ژبه خبرې ونه کو چې ټول پرې-

پوه شي چې څه وایو او حقیقت څه ډول دی.

عادي روابط چې اوس زموږ ترمنځ موجود دي نو د عادي روابطو

نه مقصد چې د پاکستان صدراعظم ورته اشاره کړې ده څه دی؟ لکه څرنګه چې څو ځله ویل شوي دي یو ځل

بیا تکراروم چې زموږ او پاکستان ترمنځ د پښتونستان د قضیې او زموږ د پښتنو او بلو-

څو ورونو د سرنوشت څخه پرته بل هیڅ اختلاف نسته.

آیا دا ښه نه وه جناب بوګرو د آسیا په دغه سیمه کې چې موږ پکښې ژوند کوو

د سولې د ساتلو د پاره په پراخه زړه، ښه نیت او د ورواندیشۍ سره ویلي وای چې پاکستان د افغانستان د حکومت سره

خبرو ته تیار دی په دغه صورت کې به یو ډول ښه نیت د خبرو د مېز ترشا ناست وای څومره به ښه وه چې ښې نتیجې ته رسېدلي

وای او که نه کولای مو سوای او کولای مو خپل اوسنی دریځ لکه څنګه چې دی وساتو.

په هر صورت هغه د پاکستان د صدر-اعظم ښاغلي بوګرو کار دی هغه چې د افغانستان په حکومت پورې مربوط دی

کولای شم ووایم زموږ دریځ روښانه دی او د هر ډول خبرو د پاره چې په هغو کې د مخکې شرط نه وي تیار او چمتو یو.

د افغانستان ملت همیشه سوله دوست او د بشر دوستۍ او صمیمیت نیک بختۍ او نیک مرغۍ د سولې او صفا د سیوري

څخه پرته بل ځای کې نه وینې او په همدغه اساس دی چې زموږ د خارجي سیاست ستن او مقصد د ګران افغانستان د ګټو او ملي تمامیت په ساتنه د متقابل احترام او د دوستۍ په اساس د ټولو ولسونو او د نړۍ د ملتونو سره ټینګه او ټینګه په وي.

«پاته په ۲٤ مخ کې»

# په کندهار کې دافغانستان د جمهوري دولت ملي بیرغ په شاندارو مراسمو سره پورته شو

کندهار د غویي ۱۹ ا

دافغانستان د جمهوري دولت ملي بیرغ په شاندارو مراسمو سره

د کندهار په ولایت کې زموږ د ملي مشر د دولت د رئیس او صدراعظم ښاغلي محمد داؤد تر وېنا وروسته چې د راډیو افغانستان څخه په مستقیم ډول خپره شوه د کندهار د والي ښاغلي محمد ایوب عزیز د خوا د دغه ولایت په ودانۍ کې د سهار په لسو بجو پورته شو.

د جمهوري دولت د ملي بیرغ د پورته کېدو په وخت کې د کندهار د وطن دوستو خلکو د خوا په بیرغ باندې ګلان وشیندل شوه.

د کندهار والي د یوې وینا په ترڅ کې د بیرغ او نښان د مفاهیمو او هم په دې باب چې بیرغ د وطنوالو په روحیه باندې څه تاثیر لري وینا وکړه.

د بیرغ د پورته کېدو په وخت کې د مسلحو قطعو د خوا څخه بیرغ ته د احترام رسم په ځای شو او ټولو حاضرو کسانو په بشپړه سکوت سره د جمهوري دولت د ملي بیرغ احترام په ځای کې.

ورسته تر هغه یوه ترانه چې دافغانستان د جمهوري دولت د ملي بیرغ په مناسبت جوړه شوې وه د پوهنې د شاګردانو د خوا ولوستل شوه.

او وروسته د افغانستان د جمهوري دولت د ملي بیرغ د هرکلي په خاطر د پوهنې شاګردانو ځوانانو، هلکانو، نجونو سپین ږیرو او په کندهار کې د اوسېدونکو پښتونستانیانو د خوا ملي اتڼ په ډېره خوښۍ او خوشحالۍ سره اجرا شو.

په دغه وخت کې د طلوع افغان فوق العاده ورځپاڼه چې په همدې مناسبت چاپ شوې وه حاضرینو ته ووېشل شول.

د باختر نماینده خبر ورکوي چې د کندهار په ولایت کې د جمهوري دولت د ملي بیرغ د پورته کېدو په مراسمو کې د مرکزي ادارو رئیسان او مامورین کارګران کسبګر، په کندهار کې اوسېدونکي پښتونستانیان او په زرګونه ناریینه، ښځې، هلکان، نجونې، د پوهنې شاګردان حاضر شوي وو.

د پوهنې خبر سره سم دافغانستان د جمهوري دولت ملي بیرغ د پورته کولو مراسم د کندهار د قول اردو په قوماندانۍ او د ۱۵ قوا او په قوماندانۍ کې د نورو قطعو او قواوو د قوماندانانو د خوا په همدې وخت کې د وینا وو په ترڅ کې چې دافغانستان د جمهوري ملي بیرغ د مفاهیمو په باب ورکړه شوې، پورته کړه شو. او ملي بیرغ پورته کېدل د ټولو صاحب منصبانو او ټولو عسکرو افرادو د خوا په تود احساساتو سره استقبال شول.

د باختر نماینده د کندهار ولایت د سپین بولدک د ولسوالۍ څخه خبر ورکړي چې دافغانستان د جمهوري دولت ملي بیرغ په همدغه وخت کې د سپین بولدک په سرحد داري کې په خاصو شاندارو مراسمو سره د کندهار د ولایت د ژاندارم د قوماندانۍ د مرستیال د خوا پورته کړه شو.

په دغه مراسمو کې د افغانستان جمهوري دولت د ملي بیرغ د استقبال د پاره یو شمیر زیات پښتونستانیان او د سپین بولدک د ولسوالۍ خلکو برخه اخیستې وه.

د مراسم د ورځې په پای کې نیمو بجو د ښاغلي محمد داؤد د عمر د اوږد والي په دعا او ژوندۍ دې وي افغانستان تل دې وي جمهوریت، اوږدې دې وي ملي بیرغ، بریالي دې وي دافغانستان ځوان اردو په شعارونو پای ته ورسېدل.

کندهار

**مسئول مدیر: کریم (طالب)**

مهتمم: رحمت الله (مروند)
اداره: د شهیدانو واټ

د ۱۳۵۳ کال غویی میاشت


# د افغانستان د انقلابي جمهوریت ملي بیرغ

د نننۍ نړۍ ټیوادونه پر ته د هغو د معینو نومو هغه د هیڅو ملي شاخصو او سمبولو په واسطه پیژندل کیږي د سمبولونه او شاخصونه د یوه هیواد ملي او تاریخي

هویت د حال په ژبه منعکسوي. د دغو سمبولو هغه تر ټولو مهم شاخص او معرف د هر هیواد ملي بیرغ دی.
ملي بیرغ د اقتصاد یوه هیواد د تاریخ سیر او د هغه

مات ملي اقتصادات د رنګ او رمز په ژبه تعبیروي. هغه کسان چې د رنګو په رمزونو پوهیږي نو هغو ته د بیرغ تعبیر هم ګران او مشکل کار نه ایسي.

په افغانستان کې بیرغ ډېر اوږد تاریخي رسالت لري. کله چې «یما» د آریایانو ملي مشر د بخدي یا اوسنۍ بلخ لرغوني ښار ودان کی او یو ملي جشن ئې برپا ئه

کی او د لوړي عمل د باره د دغه لرغوني تاریخي ښار د کلا پر دیوالو او برجانو باندې د آریایانو ملي بیرغونه ودرول سول. له هغه تاریخه بیا تر نن ورځې

پوري د دې سیمې خلکو د بیرغ په ارزښت آګاه دي او د هغه شان و شوکت او برم ته په خاص احترام او امانګه قایل دي. د دې تائید و نکی هغه پاک او سپیڅلي احساسات دي چې ژموږ د جمهوري ملي بیرغ د پورته کولو په

مراسمو کې د خاص و عام، ژاړه او وار، ښځو او نر له خوا د خپل ملي سمبول د او چتیدو په وړاندې ابراز سول او په ټول هیواد کې په شاندار و مراسمو د هغه هرکلی وسو.

د افغانستان ملي جمهوري بیرغ چې ژموږ د انقلابي جمهوریت د لارښوونکی او ستر قاید ښاغلي محمد داود په لاس د آسیا په زړه کې ورپول سو موږ ته یو ارزښتناک

غوړې افغانستان زړه پر او جلال د اپه زړه کوي. او د یوه مترقي او پر مختللي افغانستان زیری راکوي.
جمهوري بیرغ د جمهوریت د تاریخي پدیدې یو عالي

ارمغان دی چې تاریخ به تل په هغه فخر کوي او د دې مېش د پاره به د افغان غیور قام د افتخار او ویاړ نی منبع وي.
جمهوري بیرغ د ملي وحدت، ملي یووالی او ملي

حاکمیت ډېر ښه سمبول دی چې د هغه تر سیوري لاندې د افغاني قرلني ټول ځېري بې له کوم تبعیض او امتیازه د ا غوښتنې پوره کوي او د ګران افغانستان د عظمت او

ارتقا بنسټ ږدي.
دا بیرغ موږ ته د ورور ولۍ، د وطنپرستۍ، افغانیت او د دې پاکې خاورې د خدمت په لار کې د سرښندنې درس راکوي

جمهوري ملي بیرغ چې د افغان اولس د غیرت او شهامت سمبول او د ملي افتخار تر شاخص دی، په عین حال کې ژموږ د ملي هیلو او مترقي اهدافو ډېر ښه منادي

هم بلل کیږي. د جمهوري بیرغ هر اهتزاز د افغان اولس د جوش او جنبش رمز افاده کوي د دې ملي سمبول تر سیوري لاندې به ژموږ د جمهوري کاروان ملي او مترقي هیلې

مخ په وړاندې ځي او د مقصد پر لور تلوار سي یي.
تل دې وي افغانستان
ژوندی دې وي جمهوریت ستر رهبر
اوږد دې وي جمهوري ملي بیرغ

د مخطايي ليکنه او څېړنه

# هنر څه شی دی؟

## هنر يو اجتماعي پديده ده چې د زيربنايي مؤسساتو په بدلون تکامل کوي

هنر د بشري کلتور په تاريخ کې او ږده سابقه لري او لکه نور اجتماعي مؤسسات چې د روبنايي حيثيت لري د زيربنايي بدلونونو په اغېزه يې له ابتدايي حالت څخه مترقي خوا ته تکامل را پيدا کړی دی.

دا سوال چې هنر څه شی دی؟ خورا ډېری ليکني پوښتنه ده او د مختلفو مکتبونو پيروانو هغه د خپلو اصولو په تحت کې تعريف کړی دی.

د هنر د تعريف په برخه کې په لنډ ډول دا تعريف تقريباً جامع دی چې هنر د انساني ذهن يوه تعبيري وسيله ده او يو هنرمند په دغه وسيله خپل تخيل او تفکر ويل چاته ور انتقالوي يو مجسمه جوړونکی په بت (پيکر) کې خپل تخيل ځايوي يو نقاش په خطونو کې يو شاعر په الفاظو او يو آهنګ جوړونکی په آواز خپل تخيلي مفاهيم و نورو ته ور انتقالوي او يو رقاص په حرکت کې هغه څه چې ده په زړه کې وي ويل هغه چاته چې د ده هنر ياوېښ يا يې اوري ورفهموي.

د بشر يوه خاصه دا ده چې هغه د هنر په تخليق کې قدرت لري او څرنګه چې ده په مادي او اقتصادي ماحول کې بدلون راغلی دی نو هنر يې په هغه اندازه تکامل کړی دی.

د لومړني بشر د هنر قديم ميراثونه چې موږ ته پاتې دي يو يې په فرانسه کې د (لوکر) په غار کې پر ډېرو دېوال يو څو کاږه واږه خطونه دي چې تاريخ يې تقريباً شلو زرو کالو ته رسېږي په دغو څو کږو وږو خطوطو کې د هغه وخت انسان خپل فهم چې ډېر ساده او ابتدايي دی ځای کړی دی څو تر هغه راورو سته چې کوم آثار پيدا شوي او بيا د تمدن و عصر ته را رسېږي و ار څو نه چې بشر طبيعت د خپل ژوند له پاره تسخيروي ورځ تر ورځ په زيربنا کې يې تکاملي تحول ځای نيسي نو په هنر کې يې هم د کيفيت او کميت له لحاظه ترقي په نصيب کېږي.

موږ که نن د مصري فرعو نيانو د دورې اهرامو ته د چينايي مزدورانو په لاس جوړ شوي لوی دېوال، د اريايانو ويدې او بسته آثار د يوناني شاعر هومير ايلياډ او اوډيسه، د لېونارډو دوينچي او ميکلانژ نقاشۍ د برني مجسمې د موزارت او شوپن کمپوزونه د شکسپير او پوشکين اشعار او بالاخره د چارلس ډيکنز او ماکسم ګورکي ناولونه او داسې نور ټول آثار ګورو نو هغه د هنر نمونې بولو او دا هر اثر د خپل عصر د مادي او معنوي شرايطو تخليق دی چې د خپلې زمانې د کلتور په ترقي کې اغېزه لري.

اوس نو د هنر په باب دا پوښتنه ولاړېږي چې هنر په مجرد ډول دا رزښت اورونکی د يو لوا او که هغه د يو بل عالي هدف له پاره استخدام کېږي و په دې برخه کې نن دا ډېرې په علمي ټولنو کې تود بحث روان دی او په بله مقاله کې به د دې پوښتنې په جواب وواېو چې:

«هنر د هنر له پاره او که هنر د ژوند له پاره؟»

د هنر په باب خو راځي پر خبری شوېدی او دوو پرېښتو چې هنر د هنر له پاره او که هنر د ژوند له پاره هري یوی یوه ډله د هنر څېړونکی پوهان د هغه طرفدار کېږي یو ډی مخ کی تر دی چې د هنر په باره کی د نظر یو ډېر اختلاف بحث اوږد کېږي و نو دا علمي فیصله په وړاندی

کېږو چې هنر یوه اجتماعي پدیده ده او کله چې د هغې اجتماعیت قبول کړو یعنی ارزښت یې په اجتماع او ټولنه پوری

مربوط وبولو نو اصلي پوښتنه په خپله جواب پیدا کوي. کله چې د ټولنی نوم په دغه بحث کی اخلو نو ژوند د هغی لازمه

دی او نو وایو چې هنر د ژوند له پاره.

په نولسمه پېړۍ کی د هنر په باره کی تاوده بحثونه روان وه او د هغه

وخت یو پوهاند (چرنشویسکی) وایی «دا فکر چې هنر د هنر له پاره غواړی دومره عجیب دی لکه ئن (۱۹ پېړۍ) چې

ثروت د ثروت له پاره او ساینس د ساینس له پاره استخدام شی په داسی حال کی چې موږ باید دا په یقین سره ومنو چې

د انسانی ژوند ټول فعالیت باید د انسانی ژوند له پاره وی په ثروت باید انسان هوسا شی، ساینس باید د ژوند د ترقیو

رهنمایی او همداسی هنر هم باید د ژوند د مهمو مقاصدو له پاره په کار واچول شی نه یوازی د یوی بیهوده او بی ثمره

آنی خوښی له پاره»

یو بل پوهاند بلخانوف چې د «هنر او اجتماعي ژوند» په نامه یې کتاب لیکلی دی وایی:

«ټولنه د هنر مند له پاره نه ده جوړه شوی بلکه هنر مند د ټولنی له پاره جوړ شو یدی

نو دا د هنر وظیفه ده چې د انسانی استعداد په کمال کی مرسته وکړی تر څو اجتماعي سیستم کمال ته ورسیږي.»

دا لیکوال هنرمند ته د ټولنی د سیستم په کمال کی وظیفه ور کوي

او نو ځکه وایی چې هنر باید د ژوند لپاره وی.

څرنگه چې هنر په ژوند پوری

یو تړلی موضوع ده له ژوند څخه بېلوالی یې نه یوازی د هنر سره دښمنی ده بلکه د ژوند سره په

بی علاقه گی تلقی کېږی. د بشری فرهنگ په تاریخ کی هغه ډېری بدی ورځی دی چې هنر د ژوند څخه

شړل شوی دی او دغه جلاوالی یې د ژوند څېره په هنر کی وحشی کړی ده، خو د ژوند سره په پیوستون

د ټولنی د تمدن په انکشاف کی یې ډېره لوړه اغېزه کړی ده او نو دا وجه ده چې موږ وایو هنر د ژوند

له پاره نه هنر د هنر له پاره!!

---

## د لویانو خبری

د ډېر قوی او زوروری د پاره هر څه کول امکان لری.
(دیرواك)

هغه څه چې انسان نیکمرغه کوی هغه مشغولیت او کار دی.
(گویته)

---

# موسیقي د لوتر په نظر

د ساعت تېریو په منځ کی فقط دوه شیان زما په نظر کی ډېر په تمرینات دي او زه له دی دواړو سره

علاقه لرم چې یو یې موسیقي او بل یې د دار بشو بازی لکه چوگان بازی- کېښتی چلول او داسی نور دی. موسیقي له زړه څخه غم او له سر څخه افکار او خیالات لیری کوی.

❀ ❀ ❀

موسیقي د یو خواشینی او پرېشان انسان د تسلا د پاره ډېره ښه منشا ده، زړه د موسیقی په اثر آرام،

تازه او خوا لېږی.
موسیقي یو داسی مربی دی چې خلک نیکخو یه آرام، مدبر او

هوښیار وی.

❀ ☆ ❀

زه نه غواړم چې خپله لیمو سیقی د لویو سوغاتو په عوض کی چا ته ورکړم ځوانانو ته ښایی چې هر کله دی

صنعت ته پروزښت او هغه د ت ورکړی، ځکه موسیقی خلک مستعد، لایق او د کار خاوندان کړی.

نغمه ډېر ښه صنعت او تمرین دی موزیک ځوانکی او اوریدونکی له خواشینو څخه خلاص

خوښ او خوشحاله وی، ځکه د غه په له خلک د موزیک په اورېدو سره غمونه او پریشانی له ځانو څخه لیری کوی.

### په ادبي اثارو کره کتنه

### د «ادیب» په قلم

# داجمل کچکول

کچکول د پښتو د او مبالی او میارد لیکوال او خوږ او اور ژبی لیکوال اجمل خټک د هغو لیکو یوه مجموعه ده چې په بانکه حرم او مې اخبار کې یې د پښتو پاڼې له مضامینو څخه د ژوله کې یده او په مستقبل کې ول هو کاله وبالدي دیوی رسالي په ول خپره شویده.

داجمل صاحب په باب به دا خبره زیاته وي چې دده سوانح لیکو څکه هغه ان سبا د پښتو په ادبي او سیاسي جهان کې یو پیوندلی شخصیت دی.

داجمل صاحب شعر هرچا اوریدلی دی او د نثر له لحاظه د دوی قهرمانی هم هر څوک منی خو به ژورنالستیک لحاظ دده

کچکول د محیط او ماحول یو داسی رنګین تصویر دی چې اجتماعي انتباهات یې ډیری ژوری ریښې لري دا دی د دغه اثر څخه یو پارچه درانقلوو.

● ● ●

ستاسو د څولوله دوستان وی خدای دی لري او څکه زه داضروري ګڼم چې زه تاسو ته دخپلي تجربي په وجه چل وښیم چې څنګه دوست سره څنګه رویه ساتل په کار دي څکه چې زما چل د رپاندي ونشي.

زما یو دوست ژ هغه هم چیری خبری کولی او زما هم عادت دی چې مجلس کښې چا ته دخبری وار نه ورکوم یوه ورځ داته اخر هغه دوست ریل چې اشناسته او زما یاد نه ورنه شوه څکه یې زه وایم چې ما خبری کولای او تا اوریدی او ته وایي چې ما خبری کولای او تا اوریدی.

لو ته ستل بیاس او څې اوته زما ته خان ته داسی ملګری وګوره چې ستا اوري او زه به خان ته د خپلو اوریدو د پاره یو بل څوک پیدا کړم.

د دی واقعي نه پس ما ته زما تجربي یو څو څیزونه ښودلی دي هغه تاسو ته پیش کوم.

چې ملا دی دوست شی حلوا ورته ډیره پخوه او د بل ملا کمه ورته وایه. چې خان دی دوست شی ورته خان اعظم وایه او د کور ماشومان یې ډیر لوبوه. چې شاعر دی دوست شی شعرونه یې ستایه او که سر دی خوږیږي هم دده شعرونه اوره. چې وکیل دی دوست شی دده کټلی مقدمه ورته یادوه. او بیرسټر صاحب بیرسټر صاحب ورته وایه چې بابو دی دوست شی چیرته د هر یې سره

ورته یارانه جوړه کړه او شپه ورځ ورسره دده خبری کوه. چې شاخیل دی دوست شی د سپی او مې ژصفت یې کوه او

خان سره یې په کښې او چت کښینوه چې استاد دی دوست شی د هیڅ ماسټر نقصونه‌را او باسه او خان د ماسټر یکښې.

انسپکټر یا ناظر ته چې حکیم دی دوست دا کټر ورته یه وایه او ده ته لقمان حکیم وایه چې ایډیټر «مدیر اخبار» دی

دوست شی د سیاست افلاطون ورته وایه او که دده اخبار ته ګوری هم دده اداریه بل (سرمقاله) په ذکر کوه.

چې لیډر دی دوست شی دوزارت خبری ورسره کوه او چې کښې خلکه ناست وی ده ته د خبرو موقع جوړه ده.

«باته په ۲٤ مخ کی»

افغاني فولکلور:

# په فولکلور کې د متلونو ارزښت

مثلونه د پوهانو په نظر کې د هغو مفاهیمو څخه عبارت دي چې د تلفظ او معنی په لحاظ څه عام او خاص مثلي او د ژوندانه په سختو ساعتونو او په خوشحالو ونکو لحظو کې ئې په بدیهي او ساده طور استعمالوي او د تاریخو مرحلو په شان د مطالبو د پیدا کولو د پاره ډېر ژر له هغو څخه کار اخلي.

مثلونه د محنت په وخت کې د پند او نصیحت په حیث استعمالیږي او د هغو مفهوم له حکمت څخه هم بلیغ دی ځکه د خلکو ټولنه پر ناقص او نا مثلي شي ه بشي قبلولی.

یو پوه ویلي دي د خبرو د ټولو ډولونو په نسبت د مثل امتیاز په ځلورو شیانو کې دی.

د لفظ لنډوالی، تشبیه، د معنی رسول او ډېر ښه کنایه.

دغه ځلور شیان د بلاغت ډېر لوړې پایې دي:

امریکائي پوه ار تشیلر د متلونو داسې تعریف کوي.

مثل یو مشهور تعلیمي اسلوب دی چې د کلاسیکې په شکل زیاتره پر عمل تعرض او اشاره کوي او یا د حالاتو څخه په یو حالت باندې حکم کوي.

افغاني ټولنه د متلونو له لحاظه چې د فولکلور غوره اړخ ژبتناك ثروت دی غني ده او تر اوسه پورې د خلکو په مینځ کې په زرهاو متلونه مروج دي او استعمالیږي.

که څه هم زموږ ځینې متلونه د لفظ او معنی په لحاظ او یا یوازې د معنی په لحاظ د نورو هیوادو د متلونو سره نږدېوالی لري او د دغه نږدېوالي په وجه زیاتره خلک گومان کوي چې دغه متلونه له نورو هیوادو څخه زموږ د ادب په فولکلور کې گډ شوي دي مگر د فولکلور پوهانو دې اشتباه ته جواب ویلي دی او وائي د متلونو تر مینځ نږدېوالی په دې لحاظ دی چې خلکو له پوهاوي څخه بل ځای ته مهاجرت کړی او د ځان سره د نورو قومونو په ترڅ کې د ځان سره انتقال کړي دي او د دوی په نوي محیط کې خپور شوي او د هغه ځای د خلکو د فرهنگ او کلتور جز گرځېدلی دی له بلې خوا هر لکه چې بشري تجارب په ټولو جوامعو کې مشابه تاریخي مراحل تېروي نو په بېلو بېلو محیطونو کې یو شان تعبیرات پیدا کیږي لکه چې په متلونو کې هم لیدل کیږي.

په افغاني ټولنه کې متلونه په دوو ژبو یعنې پښتو او دري ژبو کې مروج دي چې ډېر یا ترو معنی او مطلب یو دی د مثال په ډول یو متل په پښتو ژبه ویل کیږي چې (ارزانه بې علته نه وي او گران بې حکمته) او په دري ژبه ویل کیږي چې «ارزان بې علت نیست و قیمت بې حکمت».

---

## عدالت د پوهانو له نظره

د یوه ساعت عدالت د اویا کالو عبادت څخه ښه دی.

✡✡✡

د عدالت په مقابل کښې مه غلي کیږه.

✡✡✡

د عدل او عدالت څوړه لار د مظلوم سره مرسته ده.

✡✡✡

که عادلان وا وسو تر ټولو به قوي يو.

✡✡✡

اولاد به ئې له کېدې په سپکه
سترګه نه کتل بلکه د هغې پر سر
به ئې د رحم او عاطفې لاس

تېراوه.

په اریاییانو کې د نجارۍ،
آهنګرۍ، زرګرۍ، کولالۍ ـ

چرم دوزۍ، کڼې بافۍ کسبونه
له قدیمه څخه یاب او په دې
کسبو کښې تر یوې اندازې پورې

پرمخ تللي وه له شعر او شاعرۍ
سره ئې له مذهبي نقطه نظره څخه
خاصه مینه درلوده او موسیقي

ډېره ندره پکښې درلوده. د سوداګرۍ
مالونه ئې له یوه ځایه څخه و بل
ځای ته په کښتیو، خرو، سانډو،

اوښانو او یابوو نقلیه وسایلو
نقلول او ډېرې ګټې به ئې لاس
ته راوستلې د خواږه غلا نسبت

وابو وغلاوته ډېره پکښې رواج
وه او ښځمنو لې د سرایش توب له
منځه سره د پسو دوا کسار باله

او بیضې ئې د لده ګرزولې وه او
څکه «رشیانو» په ریګوېد کښې
هوځایه دا کار غندلی او مذهباً

ئې دوی له دې کاره څخه منع
کړې دی ـ خرو هم به آریاییانو

کښې تر یوې اندازې پورې قدر
درلودې او دیوه منتر له پاره به
ئې کله کله سل خره هم نذرو له

ریګوېد وایي د (دسیه) او داس
خلکو به آریاییان ډېر تنګول
او څکه له دوی سره ډېر ښمني او نفرت

تر اوسه پورې موجود دی دا

قومونه د هغه هغه قدیم او سیدونکي
وه چې تور رنګ، پلنې پزې، او
عجیب الهیکل بدنونه ئې درلودل

اکثره وخت به ئې د آریاییانو
کورمونه او رمې غلا کولې یا به
دا ډول مالونه او غلا له پاره د شاو

خواګاونو ملکو ته تلل. مشران
به ئې په ځینو کلا کښې اوسېدل
(شو لنګ) ته ئې ځینګه عقیده

درلودل مګر د «مکیه» عقیده لرـ
ونکي پر مخ پکښې نه وه دا ریاییانو
(دیوتاو) ته به ئې چکنځل کول

او په نورو کښې ئې ډېر نفرت ځنې
درلودې د تاریخي بلګنو په ترڅ
کښې دوی آثار د هغه په سند کښې

څوځایه مېندل شوي دي د (وهنجو
دیرو) ډوډه چار چې په سیند کښې
تر اوسه پورې په عطر و به حال کښې

موجود دي «دسیون» قوم د پاچا
(راجا شېر) پایتخت ؤ او تر سلو
زیاتې پخې کلاوې ئې پر چار چاپېر

ودانې شوې وې. دریګوېد په قول
د هغه په غیر آریائي قومو کښې
دې راجا قوم ډېر مهذب او ځپلی

ؤ مګر په پای کښې آریاییانو مات
او قول ځایونه ئې ځنې ونیول په

دغه وخت کښې آریاییان دسیون
قوم د «شولنګ» (دیوتا) چې دوی
پخپله ژبه (اګردیو) باله معتقد

شوه دریګوېد د لیکنې په استناد
داهم ویلای شو چې د «اکر»
لمانځنه به ئې پوازې پر هغانو

بلکه د شاو خوا او د وملکو هم کوله.

د هغه دې آریاییانو مشران به د لرګو
په چکلو ماڼیو کښې اوسېدل او ځینو ځینو
به ئې د پخې کلاوې هم جوړولې

چې هرې کلا به ئې تقریباً سل دیوالونه
درلودل او د عامو خلکو ودانۍ د خاورو
وې د مینځانو او مریانو دا نیول او څرخول

له قدیمه څخه پکښې رواج وه.

آریاییانو به جنګو کښې زغرې
اغوستې او د جګړې و یاورزښې مسابقو

له پاره به ئې آسان روزل رشیانو
(عابدانو) به د «سوم» شیره او عامو
وګړو به د استراحت په وخت یاد مذهبي

نو بېر په ورځو کښې شراب استعمالول
هر «رشي» جلا «آشرم» درلودې او په
آشرم کښې به ئې چیلو یا ناره نو ته د علومو

فنونو د با تعلیم کاوه قومي تعصب په
دوې کښې تر یوې اندازې پورې نه ؤ
د هغه چا ډېر تعریف او توصیف کېدې

چې د خیرو خیرات او تحفو په ورکولو کښې
به ئې تر نورو پیشقدمي کوله وهنو خلکو
ته به بیا په ګرکه کتل کېدل چې

خیرو خیرات به ئې نه کاوه او یا به اولسي
سیا لدار بو کښې به ئې برخه نه اخیستله
د سنسکریت د ژبې د قدیمې زمانې خیالات

د دې زمانې له ژبنې خیالاتو او جذباتو
څخه تو پیر لري همدغه سبب دی چې په

موجوده هندي ژبه او سنسکریت کښې
یو لفظ په بیلو بیلو معناو استعمالیږي
یو ژب پوهانو ته بېځایه ډېر مشکل کاروو

چې دریګوېد د زمانې د افکارو او
خیالاتو ترجماني دې د موجوده لغاتو
په مرسته سره وکړي مثلاً د (اتي تهي ګو)

«پاته په ۲۵ مخ کی»

ژباړونکی: علي محمد «رسولي»

# ډراماتیک ادبیات

# او په اروپا کې د هغو سیر

ډراماتیک ادبیات پر هغو اثارو او تالیفاتو باندې مشتمل دی چې د نیاتر په ژبه عام ډول لیکل شوي او د مشخصاتو له مخې پر دوو مهمو ډولو باندې ویشل شوي دي:
۱ـ پخواني او زاړه ډراماتیک ادبیات.
۲ـ نوي او معاصر ډراماتیک آثار.

د زاړه یونان د نظر خاوندان په خپلو کلاسیکو آثارو کې، د یوه ډراماتیک اثر د پاره د موضوع ګانې دا مهمې شرایط په توګه پیژني.
۱ـ د زمان یو والی.
۲ـ د مکان یو والی.
۳ـ د عمل یو والی.
د مثال په توګه:

په زاړه دوم کې چې تیاتر د یونان د تیاتر اقتباس ؤ او تر ډېری مودې پورې یې ځینې اهمیت درلود د منځنیو پېړیو په لومړیو وختو کې کلیسا له خوا لغوه او تیت و پرک شو، وروسته په خپله کلیسا دینې تیاتر رواوایستل چې په هغو کې د مسیح او د هغه د نږدې انځیوالانو مربوط ډرامو د یونان د تاریخي

ډرامو ځای ونیو.
په هغو کې پورتني درې (یووالو) اساسي نقشونه درلودل.

د رنسانس په دوره کې، په انګلستان او اسپانیا کې ډرام لیکنه وخپل اوج او د ترقۍ او تکامل و اعلی درجې ته ورسیده او د کلاسیزم نوی سبک منځ ته راغی. شکسپیر چې د دغه سبک بیرغچي دی په دې باب ای ډېری لیکنې وکړې.
تر رنسانس وروسته، د کلاسیزم دوري په فرانسه کې نوی شکل واخیستی، په دې وخت کې درې (یووالی) بیا را تازه شول او د ډرام لیکنې د اصلي شرایطو څخه شول. په دې دوره کې د فرانسې د ډرام لیکوالو لکه (کورني- راسین- مولیر) آثار د پورته درو «یووالو» په قید کې را ایسار پېژي.
په فرانسه او غربي اروپا کې د کلاسیزم دوره تر یوې پېړۍ لا ډېر دوام کوي تر څو چې (ګوته) او (شیلر) په المان کې د یوه ازادي تر تاثیر لاندې «کوم چې شکسپیر په انګلستان کې منځ ته راوړی وه» راڅخی او ځینې آثار لکه (ګیوم تل) (دون کارلوس)، او

د (ازلاین پیغله) چې د دې دورې آثار دي د رومانتیزم په نامه یاد سول لومړی په المان او وروسته یې د ډېرو مخالفتو سره سره وفرانسې ته هم لاره وموندله او تکامل یې وکړ.
د دې سبک مهم لار ښوونکي ویکتور هوګو، شاتو بریان او مادام دو استال دي.

## د ډراماتیکو ادبیاتو ډولونه.

په عمومي توګه ډراماتیک ادبیات پر درو برخو ویشل کیږي.
۱ـ تراژیدي.
۲ـ کومیدي.
۳ـ ملو ډرام

### ۱ـ تراژیدي

د تراژیدي د کلمې ریښه اصلاً یوناني ده او د دوو کلمو څخه جوړه سوې ده او په مجموعي توګه د (بزی آواز) په معنی سره ده. ځای یې دا د دې کبله انتخاب سوی دی چې پخوانی یونانیانو د خپلو مذهبي او دیني ننداړو او تشریفاتو د پاره د بزی پوست اغوستی او د ځینو جملو دا کولو سره یې هم مقصد د بزې هغه کاوه لکه څرنګه چې (پرا لو) یو لوی فرانسوي لیکوال لیکي «هغه جایزه چې د تراژیدي ننداري و با استعداده هنرمند ته ورکول کیده بزه وه»

تراژیدي د نړۍ د مشکلاتو
او ناملايماتو سره د انسان جګړې
او مبارزه ده.

د تراژیدۍ قهرمان د یوه
مقصد ته د رسیدو لپاره په یوه سلسله
فعالیتونو لاس پورې کوي او د هغه
په ضمن کې د داسې مسایلو سره
مخامخ کیږي چې د هغوي حل د ده
د قدرت نه وتلي وي او بالاخره
ماتې خوري.
څکه نو د تراژیدۍ اصلي
جوهر (مبارزه او جګړه) ده.

تراژیدي د اول څخه تر هغو
پورې بې چې وجود د راود
یا لیکل او لوبول کیده د لویو
قهرمانانو او باشهزادګانو افسانې
وې.
ارسطو وايي: «د تراژیدي
قهرمان باید ډیر شهرت او پوره
نیکمرغي ولري.»
انګریزي «بې چا سر» د داسې
تعریف کوي: «تراژیدي اثر
د هغو لویانو او قهرمانانو داستان
دی چې د نیکمرغي او هوسایني په
ضمن کې په بدبختیو کې لوېږي
او د خپل دوران و فلاکتونو ته
اګرځي.

تراژیدي د الیزابت په
وخت کې چې په انګلستان کې
د شکسپیر د آثارو سره نوی شکل
ته راو اوښتل، د یونان د تراژیدي
ګانو د سقوط عوامل چې ماوراء-
الطبیعت موضوعات وه حذف
او دنیایي عوامل د هغه جانشین
سول، مثلاً انسان او احساسات
یا عقیده او انکار او کله کله په
سرنوشت او اتفاق د هغه ځای
ونیوی.

## ۲- کومیډي

کومیډي هم اصلاً یوناني
لغت دی او معنی یې (کلي او زه
سندرو وایو) ده.
ددې ډول ننداره د رواج
په لومړیو وختو کې به شاعران
د دې کلي څخه و هغه کلي ته تلل
او پر یوه (څلور پښې درلودونکي)
شی، باندې به دریدل او هغه ډرامونه
چې په اې ترتیب کړې وه لوستل
کومیډي د لومړۍ وخته څخه
د یونانیانو په نظر ډیر اهمیت
درلودی او د هغه څخه ای مقصد
یوازې او یوازې تفریح نه وه.

په کومیډي کې د خندا ادبي
(مرادي) برخېلو څرخو او باندي
د «انتقاد» توپ کشوي.

لکه څرنګه چې د یوه توپ
ارزښت د هغه په منفجره موادو
پورې اړه لري د غسې د یوې کومیډي
ارزښت د هغه په محتویاتو پورې اړه
لري چې (داخلي مبارزه او شخړه
ده).

څکه نو کومیډي د هغې
د اصلي جوهر له نظره لکه تراژیدي
د مبارزې او جګړې پر بنسټ ولاړه
ده، مګر اصلاً د وسیلې او هدف
په برخه کې عمده اختلاف لري.
(مبارزه او جګړه) په
کومیډي آثارو کې په مختلفو
ډولونو ښکاره کیږي:
الف- د فرد او د ټولنې د قوانینو
ترمنځ شخړه چې یو موږی فرد د ټولنې
د عمومي او اخلاقي قوانینو په خلاف عمل
کوي نو د لیکوونکي، مؤلف، شاعر
یا کومیډیک له خوا انتقادیږي لکه
«تارتوف» او «و این» او د هغوی ملګري
د غسې افراد او په نتیجه کې د غسې کومیډي
(کاراکټر) بولي.
د غسې کومیډیانې جهاني جنبه لري او ددې
ډول آثارو بریالیتوب دادی چې تر هغه
وخته یوړي چې خرافات موجود وي
«تارتوف» هم ابدل کیږي. تر څو چې
پیسې د خلکو په لاس کې وي نو خسیس یعنې
«کنجوس» کولای شو چې هر ځای
و مومو.
ب- د ټولنې د یوې ډلې او د بلې ډلې تر-
منځ شخړې. مثلاً: نجبا او اعیانزاده
ګان، کسب کاران او بزګران مسخره-
کوي او همداسې...
په دې شخړو کې د ټولنې یوه طبقه
خلک انتقادوي لکه د (بورژوازۍ بوم)
او «فیګارو» آثار.

## ۳- ملوډرام

په نوسمه پېړۍ کې د شکسپیر
«مدو کلاسیزم» په «ملوډرام» واوښتې.
د اتلانو - رومیو - او ژولیت
د ډرامو اجرا د ملو ډرام په
اصولو دي.
ددې سبک د پیدا ایښت تاریخچه
د هغه ځای په څخه را شروع کیږي چې د
اجتماعي تحولاتو په واسطه په تیاتر کې
د دوهمې او دریمې طبقې د نجباوو او اشرافو
ځای ونیو او د تیاتر ژبه د شعر څخه په
ساده نثر را واوښتل. په ملوډرام کښې
اواز او ساز سره ګډ وي او د موسیقۍ
او نڅاو سره یو ځای کومیډي او تراژیدي
صحنې تمثیلوي.

پښتو کوونکی (نصرت)

# د طبیعت ښکلا

(دوهمه برخه)

بې له شکه پسرلی تر ټولو موسمو ښایسته او ښکلی دی ځکه چې پسرلی د طبیعت د خوښۍ او ځوانۍ دوره ده. لیکن نور فصلونه هم یو ځان د پاره نوې او بیلې لطیفې لري. ښې یې لوی او حیرت زړاوونکی ننداره تون دی چې پسرلی، دوبی، مني او ژمی د دې ننداره تون اصلي پردې دي او هره یوه یې په زړو ډېره ښکلې پرده او لطیفې لري. د پاڼو رژېدل چې د مني له هجومه څخه زړېږي. د باد په چلیدو سره خپلې اشې، پاڼې په کښتو کښې نڅاروي. پرې په دنیا وي پسه شان له ځانه ګیڼ ای نه کوي څو خدای «ج» ورکړي ښکلاوې وي والو ته ښه تر ښکاره، وځانته ای ښه متوجه کړي.

د ژمي په وخت کښې چې له آسمانه څخه واوره او باران اوري، او تند بادونه د واوري ټوټو د پسرلي د شګوفو په شان له یوې او بلې خوا څخه سره مښلي. بیا هم نو یې نظر لرونکي ښکلې ځلک او خوشونکي پرداي. او ریځې بادونه او طوفانونه له دې سببه چې د طبیعت ښکار پدونکي دي هر یو یې خاصه معنی لري چې هوښیار سړی یې له کشفه څخه خوند اخلي جاهل او غافل یې له لیدو څخه ځاري.

«جغرافیه» وائي: سهار چې لمر سره غرو څخه راپورته کوي، او ماښام چې زرین لمر ځان د دیوالو له سرو څخه کښته کوي که په یوه ګوښه کښې کښېني. او د طبیعت ښکلا ته وګوري.

یو داسې حالت به چې د خوښۍ خوشحالۍ او امید څخه ډک وي په ځان کې حس کړي. په دې وخت کې به تاسي وایاست د ژوند په تل کې قدم وهي او د نیکمرغۍ بوله اسرارو سره بلد تیا مومي.

ستاسي د زیات عظمت فضا ستاسي روح له دې ځمکنۍ نړۍ څخه پورته خپوري، په ابدي نړۍ کې سیر کوي، او د دې نړۍ مصیبتو ته او زحمتونه چې ستاسي په نظر کې لري او تحمل نه قبلونکري وي کوچني او ناڅه درته ښکاري.

پخوانیو به د دوړ پرستش کاوه او اوس هم وحشي قومونه ځنګلو له دارواحانو ځای بولي او هلته د هغو په مقابل کې عبادت کوي.

شاعران هم د دغو ښکلا ستایي او د هغو له زړه وړونکو لیدو څخه خوند اخلي. باغونه. ځنګلونه او کښتونه د طبیعت د جلال او عظمت نمونې دي. موږ چې یوه دقیقه او ګړی د ونو تر سایې لاندې آرام او د لیرو آبشارو زمزمه واورو، یا د کښتو په وښو کې غزیدلي شاوخوا د یو زړو الوتني وینو نو ګواکې زموږ له سترګو څخه پرده پورته او د ژوند په بله دنیا کې هغه ښکلا او رڼا چې په عادي وخت کې زموږ سترګې ور څخه ناتوانه وي وینو.

همدارنګه د ویالو او آبشارو له ښکلا څخه چې د طبیعت پر مخ پاندې تر هغو نور ښکلاوي ښه ښته وي نو.

اوبه د کایناتو د ژوند مایه ده او هر چیری چې اوبه نه وي هغه ځای یوې هدیرې ته ورته ښکاري او په یوه داسې هیندارې ده چې د طبیعت صفایي او ښکلا ښه تر ا ځرګندوي.

د شپنم ځاځکي چې هر سهار د ونو پر ګلانو او پر ګو پاندې څخیږي د باران ځاځکي لکه د فضا له او قیانوس څخه چې د مرغلرو په شان پر ځمکه را توییږي صافي اوبه چې په ویالو کې د هیندارې په شان تل په بهیدو دي څپې وهي.

هیبت ناکې څپې د سیندونو مخ نیولی او په لویو کښتیو پاندې لوبې کړي.

دا ټول د ښکلا او زیبایۍ ښه ردي چې د اوبو په وسیله د کایناتو پر مخ پاندې نقش لوبوي کله چې د شپې به

چو په چپتیا کي تر سپوږمۍ لاندي
آبشار ته کښېني او د هغه شور
انګیزه زمزمه اوري او داوبو
څپې وېني چي د سپوږمۍ له سپینې
ښکلې سره یو ځای شوي، د چېرو
له چاکو څخه لاندي راتوییږي
د کښېنستو او د پڅو په وچو او کلاو
کښې خپل ابدي سیر تعقیبوي
په هغه وخت کښې به ته وائي چي
د آبشار په آوازو سره مې روح
په هوا کښې پورته شي، د ښکلو
خیالو په لویه فضا کښې حرکت
کوي. د تیرو ورځو خاطري
د سینما د پردي په شان په تدریج
سره ستاسي له نظره تیریږي
صورتونه ئې د دوانو اوبو په مخ
منعکس کیږي په خپل دلنوازه
جلوه سره تاسي سرګرمه کوي
په دې طلائي وخت کښې یوازي
په خپل روح کښې د حقیقي آرامي
او نیکمرغي احساس د خپلو
مرموزو او بې پایه فکرونو
په تل کښې د ژوند اسرار پېچیده
او په تردید کښې وېنې. روح مو
له خوښۍ څخه مالا مال او زړه
مو له خوشحالۍ څخه ډک دی. فکر
مو د تصوراتو په وزرو کښې پرواز
کوي.

د ورځو کنوب خوښۍ او د
ځوانۍ ارزوګانی بیداره شوي
هغه کړی مو خوښي او خوشحاله
کوي.

کومې ورځې چي مو د سینډ
پرغاړه داوبو او څپو په ننداره
تیري کړې دي. زموږ او ستاسي د
ژوند تر ټولو نیکمرغه ورځو په کتار کې
شمیرل کیږي.

کله چي خروشنده څپې یو له
بله لاس وګریوان سي، او د لمر
وړانګې د هسکي لاجوردي ګنبدې
له سره څخه پر هغه باندي وځلیږي
د سینډ منظره دومره ښکلې وي چي
انسان لیونی کوي.

سینډ زموږ فکرونه ازاده
او روح مو روښانه کوي او داوبو
بې انتها کرښه چي لکه لویه
هینداره د بادو او طوفانو په
مقابل کښې تل خپله بڼه ساتي
زموږ د پاره په داسې منزله کښې دي
چي ګواکې موږ د خپل ژوند ډېره
لویه وظیفه هلته اجرا کوو.

د سینډ زړه وړونکې منظري
یو ډول نه دي. هغه کسان چي وانان
چي د شپې او ورځې له اوبو او څپو
سره سروکار لري د سینډ د ښکلا
له اسرارو څخه خبر دي شپه او ورځ
د لمر خاته او لمر لوېده هره یوه
د طبیعت د ښکلا بیله، بیله نمونه ده
په توره شپه کښې چي سپوږمۍ پټه،
او د آسمان مخ تیاره وي په ملیونو
ځلیدونکي ستوري د آتش ګلانو
په شان په دې بې انتها فضا کښې
لیدل کیږي. چي هر یو ئې د حال په
ژبه د ژوند راز ښیي او لکه مستي
نجوني ئې وا لوته سترګه وهي.
د سپوږمۍ په شپو کښې چي میاشت
له لوړه آسمان څخه د ځمکې پر مخ
سپینه طلا پاشي، او ټول موجودات په
دې سپینه طلا کښې داسې ښکاري او زړه
وړونکې کیږي چي د هغه ستاینه په خبرو
کښې نه ځائیږي. کومې مختلفې مرحلې
چي میاشت ئې په خپل وخت کښې تیروي
له سره څخه تر پایه پورې ئې هره یوه
خاصه جلوه لري چي د نظر خاوندانو ئې
له لیدو څخه لذت اخلي.

سره ژړ رنګونه (قوس وقزح) په خپلو
زړه وړونکو رنګو سره چي په باراني
ورځو کښې د یوې لویې او ظریفې لینډۍ په
شان د آسمان پر مخ ښکاره کیږي په ښکلا
سره هام مثل ګرز بدلی دی.

د هغو له ښکلا او ښایست له رنګو
څخه جوړه شوي دي. نو له همدې سببه
که چیري سترګي ونه کولای سی چي
د رنګونو باریکۍ او لطف لکه څرنګه
چي باید دی معلوم کړي ښکاره ده
چي د خوښۍ او خوشحالۍ یوه منبع به له
لاسه ورکړي. همداسې که انسان داورېدو
له قوې څخه بې برخې وي ژوند به ئې بې معنی
او پوچ وي. متاسفانه زیات خلک سره له
دې چي غوږونه لري له زړه وړونکو
آوازو او شور انګیزو نغمو څخه لذت
نه مومي.

د طبیعت ښکلا او ښایست زیات تر هغه
دي چي په دې لنډو سطرو کښې وسو. مګر
د بیلو بیلو فصلونو د شپې او ورځې
د تغیراتو، د سینډ، بیابان، ځنګل، باغ
او چمن رنګ په رنګ منظري د هغې لوېي
پردي په شان دي چي د خلقت د نقاش په لاس
ئې په نوو رنګو سره ښکلا موندلې، او
هره شېبه ئې تازه، تازه نوي منظري
لري.

له ځمکې څخه بیرو وآسمان ته

وګوري، دفضا په لمن کې اوريځې ووينې چې دلوبو ګټيو په شان په بيلو رنګو لکه سپين، تور او

کله بخملي رنګ سره د فضا په اوقيانوس کې لامبو وهي او دباد په لار بېرته په براخ آسمان پا يوي.

د لمر او بدو منظره دو مره ښه او ښکلې ده چې ډېر شاعران په هغه کې ډوبيدلي دي، ځکه چې

لمر او بدو ته نږدې کېږي د اوريځو ټوټې په خپله سره ده ډيرې بخملي رنګ پيدا کوي او د هغه نارو غه

په شان چې دژوند په آخره کښې دي ته په حسرت ګوري . ليرې د خوا شيني تبسم وکې او بيا نو

خپلې طلاوي داړې له شا تو خوا ځغلا وري ترې د کري شا ته پڅه سي . څه ګړی په تياوو تېر شوي

چې شپه خپل تياره لمن پرانيزي وغوړوي، ستوري يو يو له پو او بل کونج څخه ښکاره سي .

د آسمان محفل ته په خپل وجود سره ښکلا ورښي . که دسپوږمۍ شپه وي، مياشت لکه ښکلي محبوب

له آسماني کړکۍ څخه خپل سر را ايستلي، پرانيزي يې باندې د هلا باران او روي .

د آسمان عجايبات په باد، اوريځ، باران او سپوږمۍ پورې منحصر نه دي د آسمان ستوري چې

زموږ په نظر کښې ديوڅو آتشي نقطو په شان بريښي . هر ستوری يې يو ه لو يه دنياده چې تر اوسه انساني پوهې د هغه د اسرارو

پر کشف قدرت نه دی موندلی .

سنکا وائي: «دا په څوک وي چې پرشنه آسمان باندې په مليونو

روښانه ستوري و ويني، او د کاينا تو دعظمت په مقابل کښې د تعظيم سر کوز نه کړي؟» .

د آسمان ستوري د صحرا د ريګو او دسيند دغا ښکو په شان زيات، او بې شمار ه دي

چې زيا تره يې د لمر په شان په خپل شا وخوا باندې ډېر ستوري لري چې موږ د هغو د ليدو څخه عاجزه يو

موږ ته نږدې فضا کې هم ډېر ستوري شته چې په تدريج سره خاموشه شوي دي . کوم اتري

پاته نه دي . لکه چې وای تر څو مليونو کلو نورو سته به زموږ لمر هم بې تا ثيره شي او فذري به يې

په فضا کې تيت او پر کې سي .

د ستورو په عظمت کې فکر کول د تعجب او حيرت مايه، د بيوزلي

انسان کله چې د سيند په غاړه ودر يږي له هغه سره وا يي (دا سيند څومره لوی او څپې يې څومره

له هيبته ډکې دي) ليکن سيند نسبت و بې انتها فضا ته دقياس وړ نه دی، ځکه چې اصلاً موږ د هغه سره

د خپلو ټولو سيندو، وفضا ته يوه نا چيزه ذره ده چې په بې اندازې بيا بان کې لو يدلې ده . که ځکه

له زحل او مشتري سره چې د لمر توابع دي مقايسه کړو . د هغو کمو الي په ښه ترا ښکاره سي .

لمر سره د خپل عظمت په دې

بې اندازې فضا کښې يوه خواره ذره ده او کوم ستوري چې زموږ په نظر کښې کوچنې او حقير ا يسي، ا ز به تيار ه شپو کښې

يې په زرز حمته به ليدو موفق کېږو تر لمر زرواره لوی دي .

تر ټولو عجيبه داده چې په بې انتها

فضا کښې داسي ستوري سته چې د هغه رڼا موږ ته تر ډېرو کلو وروسته را رسيږي که څه هم يادوي په يوه ثانيه کښې د رڼا

د چټکوالي اندازه «۱۸۰،۰۰۰» ميله ده دې و همېدو نکې مسافې له تصور څخه به په حيرت کښې سي . نور ستوري هم

شته چې يا موجوده اسبابو سره يې ليدنه نه کيږي .

د هغه عجيب او خا رق العاده موجودات

چې د علم په قدرت سره يې له اسرارو څخه يو څه خبر شوي يو زموږ د پاره د خوښۍ او لذت منبع ده، او موږ د فکر په وسيله

د هغه په عظمت کښې خپل لږ او نا څه تکليفونه هير او له خپل غفلت څخه خجل او شرمنده کيږو .

---

## عدالت د پوهانو له نظره

فقط عدالت دی چې د نيکمرغۍ موجب ګرزي .

✿✿✿

غرور او تکبر انسان د عدالت له لارې څخه ګرزوي .

✿✿✿

عدالت د عبادت او پرهيز ګارۍ څخه ښه دی .

✿✿✿

حقيقي عدالت په عمل کښې دی .

✿✿✿

ژباړونکی رشیده آرین»

د پدیدو د پېژندنې د پاره

# درې ډوله ضروري تحلیله

د هغو موضوعاتو د پېژندنې د پاره چې زموږ تر څېړنې او غور لاندې وي، درې ډوله تحلیله ضروري دي:

۱ـ ستر کچرل تحلیل
Structural Analyze

یعنې د موضوع د ساختماني اجزاؤ او یو تر بله د هغو د ارتباط تحلیل.

۲ـ ژنتیک یا تکویني تحلیل
Genetic Analyze: یعنې د موضوع د ودې او تکامل د مرحلو

او د هغو بر له پسې حالاتو تحلیل د ې چې موضوع د زمان په جریان کې طي کړې دي، ددې پدیدې

د زېږېدلو، رشد، بلوغ او پخېدنې زوال او مرګ د تاریخ کامل او هغه دوره بندي ده.

۳ـ فنکشنل یا د کړنې او عمل تحلیل. Functional Analyze:

یعنې د موضوع د وظیفو او اعمالو، پر هغو باندې د حاکمو نوامیسو او د تکامل په عمومي سیستم کې ددې وظیفو د نقش تحلیل.

مثلاً د انسان بدن د څېړنې یوه موضوع ګرځوو. د تشریح (اناټومي Anatomy) علم ئې د ستر کچرل (ساختماني) تحلیل کار سرته رسوي. جو د انتېرا پولوجي (انسان پېژندنه) او اټنولوجي (او د پېژندنه) د علومو کار د هغه ژنتیک تحلیل دی او فنکشنل تحلیل ئې د فیزیولوجي (د اعضاؤ د وظیفو علم) د علم وظیفه ده.

البته د مثال په ډول هغه ساده تو ګه ذکر شو. ددې د پاره چې په مطلب پوه شو اوس به د هغې د روښانه کولو د پاره د بلې لارې څخه راشو. هره تر څېړنې لاندې

موضوع باید هم له ستاتیک (ساکن) جهته او هم له ډینامیک (متحرک) لحاظه مطالعه کړه شي

یعنې هم له دې لحاظه چې که د ا موضوع خپل حرکت او تغیر ودروي په ټولیز لحاظ کې له څه اجزاؤ

څخه جوړه شوې ده او د اجزاؤ تر منځ ئې څه ارتباط وجود دی او که ئې د حرکت په سیر کې په نظر کې ونیسو، څه مرحلې ئې

طي کړې دي او کومې به لا طي کړي. خو د ا ډینامیک مفهوم ئې په دوه ډوله په نظر کې نیول کیږي.

۱ـ د ډینامیزم د کلمې په پراخه معنی سره د موضوع د پیدا ښت له وخت څخه بیا تر اوسه، هغې عمومي حرکت دی.

۲ـ ډینامیزم د کلمې په محدوده او فعلي معنی سره د موضوع اوسنی حرکت دی یعنې له هغه څه چې تېر شوي تاریخ

ار یا آینده ته سیر دی په نظر کې ونیول شي. د سیستم د پراخ ډینامیزم مطالعه د سیستم د تاریخ کار دی (ژنتیک تحلیل).

ـ د سیستم د محدود ډینامیزم یعنې د هغه د کړنې او عمل مطالعه فنکشنل تحلیل روښانه کوي. (ځینې کسان د سیستم پراګماتیک اصطلاح استعمالوي)

یو مثال به د ا وړاندې کړو، موږ غواړو چې

د یوې ټولنې تاریخ د پېښو په جریان کې مطالعه کړو او د ا څرګنده کړو چې د ا ټولنه د څه تر ډول چې او اوسني حالت ته را

ورسېږي، څرنګه د یا تر بار کال، مریېتوب او فیوډالی له سیستمو څخه د اتېره شوې او د سرمایه دارۍ ته

رسېدلې ده.

بل وار د ټولنې او مدني حالت
او کړنه، دهغې داخلي تضادونه
د حرکت سمت ئې، دهغې اقتصادي
اجتماعي او معنوي مختصات تر
مطالعې لاندې نيسو او دا روښانه
کوو چې زموږ ټولنه اوس څرنګه
عمل کوي، څه اقتصادي او
اجتماعي قوانين حاکميت باندې
لري او دا قوانين ټولنه وکومې
خوا ته بيايي.

ددې دوه سره تحليلو مجموعه
موږ د پديدې د ماهيت پر درك
باندې بريالي کوي، ځکه:

۱- سټرکچرل تحليل دا
راښکاره کوي چې زموږ د څيړنې
موضوع يو څرنګه سيستم دی او
له کومو فرعي سيستمو يا اجزاوو
او عناصرو څخه تشکيل سوی
دی.
ددې سيستم او لاندې فرعي سيستمو
، اجزاوو، عناصرو او واحدو
ترمنځ څه روابط برقرار دي.
دا تحليل موږ ته د سيستم (کمي)
خواوې را ښيي.

۲- ژنتيک تحليل دا راښيي
چې زموږ تر څيړنې لاندې موضوع
څه وخت او ولې را پيدا سوې ده او
د خپل تکامل په لار کې له کومو
منزلونو او غوړ څخه را تېره سوې
او څه حالات ئې طي کړي دي. ددې
حالتو تناوب او بر له پسې والی
څرنګه ؤ. دا تحليل موږ د موضوع
د (کيفي) خواوو سره اشنا کوي.

۳- فنکشنلي تحليل پر سيستم
باندې مسلط قوانين او دهغه د عمل
طرز ښکاره کوي او دا څرګندوي
چې د هستي په دستګاه کې، په
انساني ټولنه کې، په اوسني
تاريخ کې ددې سيستم رسالت
څه دی، څه کوي، چېرې ځي، ولې
داسې کوي او ولې ددې ټاکلې
خوا ته ځي. دا تحليل موږ ته د
سيستم عملي او دکړنې خواوې را
څرګندوي.

د يوه سيستم د شکلو، حالتو
او عملو په درك او سره موږ هغه
په ښه توګه پېژندلای او دهغه په مقا
بل کې خپل دريځ ټاکلای سو.
دا ښکاره ده چې د يوه واقعي تحليل
په سر ته رسولو کې د بري اصلي او
دائمي شرط پر ګڼو راغونډو سوو
اطلاعاتو او معلوماتو باندې
دهغه بنا کول دي. که نو له هيڅ
ډول تحليل څخه تسوز غيد لای.

دياد ولو وړ ده چې دا درې
مقولې بايد د تجزيې او ترکيب
(انالېز او سنتيز) له دوو مقولو
سره چې د ساختماني تحليل له
منطقي اصولو څخه دي، ګډې
نه کړو. په دې ليکنه کې د درې
فکټورله برجسته کولو څخه مقصد

دا ټولوژيک (هستي پېژندنه)
درې مقولو يعنې جوړښت (ساخت،
سټرکچر)، پيدايښت (تکوين) او
کړنې (عمل، فنکشن) طرح ده. لکه
څرنګه چې مو وويل د پيدايښت
او کړنې دوې مقولې د تر غور لاندې
پديدې د کيفيت ښکارندوی او
کيفي تعين (ماهيت) دی او د جوړښت
مقوله ئې د کميت ښکارندوی يا (کمي)
تعين دی. په دې خبرو کې نوي ټکي

د پيدايښت او کړنې د دوو مقولو ترمنځ
بېلوالی او د سرحدونو ټاکنه ده چې نتيجه ئې
د ژنتيک (ژنتيکي) تحليل او د عملي
(فنکشنل) تحليل سره بېلول دي. زما په
نظر دا مقولې ډېرې پر مضمونه او تر
منځ ئې د سرحدونو ټاکل ډېر مبهم دی.

---

د نړۍ د ليکوالو پېژندنه:

# ميرمن ګراتسيادلدا

ميرمن ګراتسيادلدا د شلمې پېړۍ لويه
ليکواله ده چې د نوبل ادبي جايزه ئې
وړې ده، دا دهغو ښځو د جملې څخه
ده چې تر اوسه ئې د نوبل ادبي جايزې
وړي دي.

دا ومودې د رومانونه او په تيره بيا
ناولونه په ايتاليه کې نن ورځ ډېر لوړ
مقام لري لکه چې ددې آثار د ايتالې
د کلاسيک آثارو په ليکې کې شمېرل سوي
ډېر ئې د دنيا په ډېرو ژبو ترجمه سوي دي.
دا ايتاليي ليکواله زياتره محلي —

دی، يعنې د خپلې ناحيې د خلکو د حيات،
افکار او ژوند ترسيموي، ميرمن دلدا
چې هم اصلاً د ساردينا ده نو په خپلو آثا—
رو کې د ساردينا د خلکو حالت بيانوي.

د «ارګي ما تونکي» د داستان
خپرېدو په ټول ايتاليا کې دا مشهوره
کړه او دې ته ئې د ادبي برياليتوب زمينه
برابره کړه. دا داستان هم ددې د نورو
داستانو په شان د ادبي جوړښت په لحاظ
ډېر ساده دی ولې د ادبي شهرت د
لحاظه ډېر ارزښت لري.



### شکر خواب

مخ دې سیالي کوي د آفتاب
زه یې کړم وېلې له ډېره تاب
سایه د زلفو را باندې وکړه
تور بخت مې ویښ که له شکر خواب

## د شمس الدین کاکړ

### دوې ښکلې څلوریځې

یار چې مې سترګې په میو سرې کړې
پر مخ ئې تورې زلفې خورې کړې
جام ئې له لاسه را څخه مات کړ
زما په خوله یې خاورې ایرې کړې

ساقي مې راکه په پیمانه کې
بېخوده پروت یم په میخانه کې
د جام په غوږ کې صدا هی وايي
چې عقل نشته په مستانه کې

## ویده فتنه

تل دې ستا د خوب آلوده سترګو خواب وي
چې فتنه په خواب ویده سي ډېر ثواب وي

لکه مې چې په میناکې تجلی
او د حسن په حجاب کې بې حجاب وي
تا چې ما ته لولوي ښې د صبر
زه هم ډېر په دا راضي یم که مې تاب وي

زه په دا سبب په ترکو یې ژړم
چې ژړا د عاشقانو د مخ آب وي
د عاشق سترګې په دا سبب شوې پاکې
چې مدام د جوي پر سر ا ه حباب وي

له خالي خزنې به څه ورکړي چې څه نه وي
که خټلې د حباب پر سر سیلاب وي
هم به دالي د نفعې اثر پیدا شه
چې په تشه کېږه صبر د رباب وي

د حریص له خیله نقده پوره نشته
لکه مار د ګنج د پاسه پېچ و تاب وي

کاملان تعلقات د دنیا نه کا
لکه باز په د خزان ښه په د کاب وي

غفلت هیڅ مناسب نه دی په و ښنا کې
سا کښان د د هر ګل وانه شراب وي
چې ښادي غواړي بې شماره بې حسابه
په «رحمان» به د غمونو څه حساب وي

«رحمان بابا»

## بهار

په نسیم دی د وصال خرم بهار دی
ګلچین سیاه مخ د باغ هر ګل عذار دی
کار د زړه مې تر حد تېر شو مخ ښکاره کړه
چې قرار وایسي زړه مې ناقرار دی

«میرزا حنان»

# دعالم انګشت نما

چې په ویښو زیبا مخ د دلبر با
زما سترګې به په څه نه وې زیبا

زه ضعیف ګرځم کیږو ورځو د دلبرو
لکه میاشت سوم دعالم انګشت نما

سره لوکان ئې د سرو ګلو په څیر زیب کا
دواړه لاس چې صنم رنګ کړي په حنا

په ما به د صنو بر ئې زه ناز پېژم
هم به بوی ئې د سنبل باد صبا

آشفته لکه مجنون ګرځم د یار زلفو
کاره له خلکو ګر ځم پر صحرا

هم به د چې شوم آشنا له شیوه کړو
همیشه یم له آشنا یو نا آشنا

شا تر خواږه «پیر محمد» د صنم کیږم
پو ره ته کړی دا ته هیڅ سترګې شهلا

پیر محمد کاکړ

# پټ پټ

چې تیر یږي له ما خواره دلبر پټ پټ
ګلوم به تل دا غم په ځګر پټ پټ

مین توب مې لکه بوی د مشکه رسوا سو
که هر څو مې ساته دا زه په هنر پټ پټ

چې هر ګند ـى ښایسته مخ ئې په بڼ کې
ګل له شرمه په غوټۍ کې وه ی سر پټ پټ

چې په خیال مې د سرو شنډو خوله کیږه کړه
لکه وز بیښي څوک تل د شکر پټ پټ

زه په ږ یو ستر ګو یوسي ته و پر یږي
ولی ته ګر زې له چا له زه وړ پټ پټ

یار مخ ته سم کاته د مین ته سی
څو څوی مرغه له باز ه وزر پټ پټ

زه «مخلص» تر خوا خوږی ده آشنا چار سم
چې مې اخلي کله کله خبر پټ پټ

مرحوم ولی محمد «مخلص»

# بهار

اې چې ته د دی چمن باد صبا شوې
شنې د سرو ی غنچې څکه په خندا شوې

په بهار کو ی د و د سنبل تخت
که ګره دی په رخسار د زلفو واشوی

خو بی زیبا ته شی په خواب د شهلا سترګو
تو دی سترګی دی مخمل په خواب زیبا شوی

چې دانه چوی پریشان له خپله لاسه
په دا خوی د ګلو ځانګی بدنما شوی

اې په دا ګلګون لباس تازه بهار ه
ستا په سر مې دی سو ګندو ی تماشا شوی

چې مثال پکښې موند ه شی ستا د سترګو
دا نر ګس ستر ګی لاهسکی تر هرچا شوی

«شید» تاد خپلو میني راز پوشی کړه
په دی د کی د نغمې په شان رسوا شوی

کاظم خان «شیدا»

تهیه کوونکی رحیمی

# هنـــر او ادب

دانګلستان د نامتو شاعر ویلیام بلیک اثر

## پسر لی ته

دطبیعت د رستاخیز آ بی بیرغ بیا په ر یپیدو سر.

دعطرو نازك بوی هرځای پرسر اخستی دی.

بیده بنفشه د و بیدو خوب و بنی او له هوسه د بیزدی.

ته وا، له لیری څخه کرار کرار د چنګ یوه مرموزه زمزمه او ریدل کیږي.

او زه دا زمزمه پیژنم. پوهیږم چې ته بیا

راغلی یې: ته یې، ای ښکلی پسر لیه چې د عطر، ګل

او د چنګ د زمزمې سره یو ځای بیا راغلی یې!

د محمد سرور (نصرت) ژباړه

# د پسرلي سهار

له کړکۍ څخه اطاق ته زړې شمال چلیدی، زما کاڼدی وادی صورت ئې چې له خرپه تازه و بنې شوی او برکت باندې بی حر کته پروت و د مهر بانی مور په څیر ئې ژاوه د غره پرې شوی پری شوی څوکې په خپل خاکی رنګ سره د افق څنډه د ژاړه د یوال په شان احاطه کړې وه.

تر لاندې چې سترګو ید کاوه زرغون او نقشو نرش خوره پدلی و. د چومرغو له ګلانو څخه چکلی وهمی دا پر ته شوی او په هو اکې ئې بوه اری وږمه پاشله.

د چمنو په منځ کې د جاری ویالو صافو او بوهرپلو ته سپینی کرښې کش کړی، او د پرو په منځ کې ئې خوشحالی او مستې چیغې بهیدلې.

له لیری څخه د سیندو او زړه وړونکی ږغ د ښ. بدا و د ونکی موسیقی په شان غوږ و ته رسیدی.

د غره د ریکو ذری د لمر د رڼا په مقابل کې د الماسو په شان ځلیدی.

چکلو پروانې د پسرلي د ګلو نو له څو کو څخه له هری خوا په ښوه اوبل ګل باندې په الوتو کې وی.

الوتونکی مرغان په ښپلو خوږو نغمو سره د خپلو ملګرو په انتظار کې نغمه سرایی کولی.

بالاخره نیږی په خپله خندانه ښه او د طبیعت په ښکلا سره د ناوکیو په شان مسته او مغروره وه.

زما روح هم د دی قول جمال او لطافت سره ډیر آرام شوی و.

د ژوند سختو او شدیدو حقایقو می له منځه وړ کاوه، او ځای ئې لطیفو او د خیالاتو عواطفو نیوی.

ما په خپل زړه کې یو مرموز جوش احساسوه.

په ضمیر کې می یو زړه وړونکی منظره پیدا کیدله.

زما سترګې چې د خوشحالی او زړ ښې پروانی الو تو ته مشغولی او ته قیبولی، دغی د لطیفو او نازکو وزرو په لبدلو سره د دغی دری حرفیزی کلمی یعنی (عشق) چې ته پر هیچ زما د تخیلاتو سلسله او که د پسرلي د سهار له عجب نقش څخه وه تشخیص کاوه

---

## عدالت

د عدالت توره خو دا تیره ده مګر هیڅکله د بی ګناه سر نه پری کوی.

✡ ✡ ✡

عدالت د حکومتونو دفاع کوونکی او ساتونکی دی.

✡ ✡ ✡

بی عدالتی خو د اقوی وګړی د مځکی پر سر تباهی ته ورولی.

✡ ✡ ✡

عدالت هیڅکله نه مري.

# د پوها نو سوغات

لیکمرغه هغه څوک دی چې د دوو شیانو څخه یو په لاس کی واری، یا څه کتاب یا داسی ملګری چې د کتاب خاوندان وی.

«ویکتور هوګو»

✡ ✡

له انسانی لوړو او عالی حرکاتو څخه هغه وخت په ډیره پوري نتیجې لاس ته راتلای سی چې عملی جنبه ولری.

«فنلان»

✡ ✡

داسی کار وکړه چې ستا د کار اساس د قانون له نری د پاره یو بی خطره قانون وګرزی.

«کانت»

✡ ✡

خلک له دی امله یو ازی دی چې د پل جوړولو پر ځای د یوال جوړوی.

«جوزف فورت نیوتن»

✡ ✡

قانون د آزادی ننګر دی د هر چا حق ټاکی او د نورو وګړو د آزادی مدافع دی.

«ج. ك هولاند»

✡ ✡

تر ټولو بهتر زړه هغه زړه دی چې د هیڅ آزار د ښې هغه ته لار پیدا نه کړی.

«ادیسن»

# ځوانان

تهیه کوونکی: رحمت الله «مروند»

## د ځوانۍ له قوت څخه استفاده

ځوانی پردې باور لري چې
د ټولنې قوه له ځوان عناصرو په یوه
بیولوژیکي حساسه او ارزښتناکه

مرحله کې چې د ځوانۍ د دورې
څخه عبارت ده واقع ده.
هو! دغه حساسه او مهمه دوره

ثبات او ځوانۍ ده چې په هغه کې
انسانان د هر رنګه ربړو توان
لري او د هر ډول کار د اجرا

د عهدې څخه وتلای شي. ځکه نو
هر څوک باید خپل ډول په دغه
مرحله کې لکه څنګه چې ښایي

سرته ورسوي او هغه مسئولیتونه
چې د ټولنې په ارتقا او پیشرفت
پورې اړه لري درک کړي او

د هغه مسئولیتونو په لیرې کولو
کې د هیڅ ډول ایثار او فداکارۍ
څخه ځانونه ونه سپموي.

ځوان باید په پاک زړه او
حسن نیت سره د خپل هیواد خدمت
ته ملا وتړي، ځوان باید ملي ګټې
پر شخصي ګټو باندې غوره وګڼي

او د ملي ارمانونو د ترسره کولو په لاره
کې د هیڅ ډول سر ښندنې څخه ځانونه
ونه ژغوري.

ګرانو ځوانانو!
په دغه وخت کې چې زموږ ګران هیواد
افغانستان یو نوي تاریخي

مرحلې ته داخل شوی دی جمهوري ځوان
او نوی نظام د ځوانانو د قوت څخه په
استفاده کولو سره د ټاکلي هدف پر لور

مخ په وړاندې ځي او چټک ګامونه اخلي د دې
لپاره چې د کړلای شو دغه ټاکلي هدف
ژر تر ژره لاس ته راوړو لازمه ده

د نوي او مترقي نظام د هدفونو د تطبیق
په لاره کې د همکارۍ لاسونه ورکړو
د خرافاتو او اجتماعي مفاسدو د له

منځه وړلو له پاره په ګډه مبارزه
وکړو او د هیواد د ترقۍ او سمسورتیا
لپاره د ځوانۍ له قوت او نیرو څخه کار

واخلو او دغه مساعد وخت چې اوس یې
لرو له لاسه ورنکړو ځکه که د دغه د
ځوانۍ دوره تېره او د زړښت مرحلې ته

داخل شو نو هغه وخت به زموږ له لاسه کم

کار نه وي پوره.
لنډه دا چې ځوانان باید له
موقع څخه استفاده وکړي او په

خپل وار سره د خپلې ټولنې د اعتلا
له پاره د توان په اندازه کار
وکړي څو راتلونکو نسلونو

ته نېکنوم په یادګار پرېږدي.

## د ځوانۍ پلوشې

د ځوانۍ د عمر قوت د ژوندانه
د پسرلي او د آرزوګانو د سرته
رسولو ښایي دي باید دغه ښه
او ستر فرصت د اجتماعي چارو ملي
هدفونو او د هیواد د پرمختیا یې
کارونو په سرته رسولو تېر شي.

✡ ✡ ✡

ځوانان باید اجتماعي
همدردي، ملي درد، او د وطن پالنې
عالي احساس ولري او د همدغې
لارې څخه خپل ممنوع او ټولنې
ته د خدمت مصدر وګرځي او په
دې ډول خپل هغه مسئولیت لیرې
کړي چې د خلکو او ټولنې په
مقابل کې یې لري.



**تهیه کوونکې : میرمن ملاله**

# یوه میرمن باید خپلې وظیفې درک کړي

میرمن پرهغه چا اطلاقیږي چې دکور او کهول ساتونکې، واکداره او سمبالونکې وي. هغې ښځې ته واقعي میرمن ته سو ویلای چې داتل دموږ اوفیشن

په فکر کې وي او خپله اصلي وظیفه یې هېره کړې وي. دیوې میرمنې اصلي او اساسي وظیفه که څه هم دښه اوصالح اولاد روزنه ده، خو یوازې دصالح اولاد په

روزنه ددې وظیفې سرته نه رسیږي. بلکه باید دمېړه د چارو په سمون او پرمختګ کې د نارینه سره یو ځای اوږه پر اوږه برخه واخلي څو د نارینه سره دمساوي

حقوقو مستلزمه وګرځي.

دا هم باید وویل سي چې د نارینه وظیفه هم یوازې او یوازې د کور د باندې شغل باندې سرته نه رسیږي.

نارینه ته دا لازمه ده، چې د کور په چارو کې د میرمنې سره سم برخه واخلي.

په هرصورت، ومو ویل چې دیوې میرمنې اساسي

وظیفه د اولاد روزنه ده، دا ځکه چې نسبت و نارینه ته میرمن دا اولاد په روزنه کې طبیعي مهارت لري. خو بیا هم تنها د چې تربیې څښتن اولاد د توانې دردونه اشې

د وا کولای ترخودي خپله دسالم صحت څښتن نه وي. غرڼګه چې د یوه کوچنې صحت ته پاملرنه یو لازمي امر دی نو د غه وجه ده چې د میرمنو وظیفه څه ترا دراپیږي.

په دې اساس نو یوه ښه میرمن هغه څوک ده چې خپلې اصلي او فرعي وظیفې ګی ښه تر ادرک کړي او دهغو وظیفو په سر ته رسولو یې خپل مسئولیت لیږی کړی وي.

متأسفانه ځینې میرمنې چې سر بیره د کور پر چارو ځینې نورې چارې تر کور د باندې پر غاړه لري په دې هکله شکایت لري چې موږ نه سو کولای په دواړو چارو

کې رسیدګي وکړو. په دې ځای کې نو دشتیا هم څه مسئولیت و نارینو ته راجع دي. ځکه نارینو ته لازمه ده چې دخپلو میرمنو سره په لازمه اندازه د کور په چارو کې

مرسته کړي به تیره بیا د هغو میرمنو سره چې دد باندې وظیفه هم پر غاړه لري.

دا ډول میرمنې که دخپلو ورځنیو چارو دسمون لپاره یو تقسیم اوقات ترتیب کړي نو په ډېر و آسانتیاو سره مخامخ سي او کارونه به یې په یو منظم ډول تر اجرا لاندې راسي پر ته له دې چې کوم کورني شخړې پیښې سي.

ښه میره دخپلې میرمنې سره ترخپله وسه مرسته کوي ځکه هغه دا احساس لري چې ځان د کور شریک او همکار بولي او مسئولیت خپلې میرمنې ته نه راجع کوي.

باسر اده میرمن باید دغذایي رژیم په هکله ډیره

«پاته په مقابل مخ کې»

# د ننوړځي مېرمن

سره له دې چې ننني مېرمنې د علمي پوهې څخه بشپړه برخه لري خو بیا هم له بده مرغه ځینې

مېرمنې د نورو سره د مخامخ کېدو کالو اغوستلو په طرز، د کورا او کهول په سمبالېدو او په مجلس ټولو

کښې د ګډون کولو په نزاکت پنه ترانه پوهېږي.

په زړه پورې لا دا ده چې

تر او سه پوه شمېر مېرمنې د ښځې وارزښت او د قدر وړ مقام ته متوجه سوې نه دي او ځان په لوی

لاس حقیر او ذلیل ګڼي.

ګرانو مېرمنو که چېرې تاسې یوې مېلمستیا ته بلل سوې

یاست باید په هغه کې ګډون وکې او تر هر څه د مخه د خپلو کالو اغوستلو په برخه کې ډېر احتیاط

وکړی. څه لاره ای وډاکې په دې معنی چې تاسې باید و پوهېږي چې دا دمازدیګر او که د ماښین

بلنه ده که د شپې دواړه مراسمو ته دعوت یاست نو هغکه باید هغه مجلس په نظر کې نیولی او کالي

واغوندي.

ځینې فقط د مېلمستیا د کلمې

په اورېدلو سره پېلېدې چې موقع ئې په نظر کې و نیسي خپل او ښه کالي له الماري را باسي او اغوندي ئې او دواړه د بلنې

په شان ځان سمبالوي او مېلمستیا ته ځي خو کله چې د مېلمنو اتاق ته داخلېږي درک کوي ئې چې دا فقط د یوه دوست

> **(د تیر مخ پاته)**
>
> پامارنه وکړي او خپل د خوړو تقسیم دا سې وکړی چې سابه حبوبات او غوښې دا ټول په یوه منظم ډول وویشي که څو ورځې یو ډول خواړه استعمال سي نو د انسان د وجود ضروري مواد نه پوره کیږي
>
> په غذا کې تنوع حتمي ده او ګرانې مېرمنې باید په دې هکله زیاته پاملرنه او توجه وکړي او په دې حقیقت ځان پوه کړي. چې به غذا د سالم صحت مهم عامل دی. هکه
>
> غذا په وجود کې انرژی تولیدوي د ښه انرژي د ښه چټک ژوند د ژوند انه او فعالیت باعث ګرزي.
>
> نو ګرانې مېرمنې باید خپل مسئولیت په ترادرک کړي او خپل قیمتي وخت په تاړړه د دوزنو او عبثو کارو تر دلاسه ور نه کړي.

د غذای په اماني لپاره بلنه وه او کېدای سوای چې په ساده کالو کې ئې په هغه کښې ګډون کړی وای.

هغه وکړ ی چې تل ساده کالي په متین ډول او ځلا نده پښه واغوندي ځرد نورو د ملامتیا وړ و نه ګرځي مثلاً د ګلدار ساده او کرا نو څخه په لږ لګښت دا سې کالي تیار کړی چې په یوه مجلس کښې یې واغوستلای سی

که څه هم دواړه په مراسمو کښې د ګډون لپاره دوه د ری کمیسه بایسولری نو په مېلمستیا، وا ده او مجلس کښې د مېلمنو سره د مخامخ کېدو طرز هم د ژوند نه آدابو څخه دی کله چې د مېلمنو ټولګه پوره سالون ته ننوځي او تاسو یې له نکوړ لا څېښنه بل څوک نه پېژني نو نه ښایي چې په یوه ګوښه کې غلې کښېنې البته دا د کور د خاوند وظیفه ده

چې تاسې نورو مېلمنو ته ور و پېژني هیښکله دا کار مه کوی چې د مېلمنو د هر یوه په را تګ سره که ښځه وي که نارینه له ځایه ولاړی سی او د ډېر تاوي په اسم پرځای کړی. د رسته ده چې هر انسان د لمانځنې وړ دی خو دا معنی نه لري چې تاسو هر یوه ته پر ښو جګی و دریږی بلکې، فقط په ښه صمیمي سلام د نورو هر کلي وکړي.

# فولکلوریک ادب د او سنی ادب په چوکاټ کې

فولکلوریک ادب چې د پخوانۍ زمانې د خلکو د خیالاتو ښکارندوی دی، ټول ئې خپل موجودیت د عامو خلکو په ذهنیتو کې ثابت ساتلی دی.

دا چې د وخت په تیریدو سره د یو نسل څخه بل نسل ته د خلکو په ذهن کې انتقال مومي وجه ئې دا ده چې دغه ادب پخپل ذات کې د خلکو په نزد یو خاص ارزښت لري.

فولکلوریک ادب نه یوازې د تیرې زمانې د خلکو د خیالاتو او افکارو هنداره ده بلکه د هغه وخت د شرایطو د څرنګوالي سره سم کلتوري، ادبي، علمي او ثقافتي او په زړه پورې معلومات هم وړاندې کولای شي او د پخوانۍ زمانې د خلکو په کردار، عنعناتو، روایاتو، دودونو او په طرز او داسې نورو تاریخي پېښو او حوادثو د رڼا اچولو څخه په ترتیب یو نسل د بل نسل له حاله باخبره ساتي.

دا وجه ده چې زموږ دا او سني عصر ادب پوهان او د قلم خاوندان د خپلو ادبي استعدادو په قوت د خپل اولسي ادب «فولکلوریک ادب» په څیر او سره یوازې د پخوانۍ زمانې د خلکو د حالاتو او دودونو د چارو څخه ځانونه خبروي، بلکه دا هڅه هم کوي چې د نوي ادب په چوکاټ کې یې په داسې عصري او فني شکل کې ځای کړي چې ورا تلونکو نسلونو ته د ادبي ذخایرو په څیر په نوي بڼه پاتې شي. څو د راتلونکي نسلونه وکولای شي چې د موجوده عصر د خلکو د خیالاتو او افکارو څخه په اسانۍ سره خبر شي او د هغه وخت د شرایطو تر حکم لاندې په ادبي ډګر کې په زړه پورې استفاده ځنې وکړای شي. څنګه مو کلاسیک ادب د بل نوي ادب سره کلک او ټینګ شلیدونکي اړیکې لري او هغه اړیکې که د یوې خوا په ادبي لحاظ زیات اهمیت لري نو د بلې خوا د یوې پوهنۍ د خلکو تاریخي د حالت هم ثابتوي.

(د دوهم مخ پاته)

## د تاریخ درسونه باید...

هغه شی چې موږ ته ور په یاد وو زموږ ملي بیرغ دی. دا زموږ د انقلاب او زموږ د جمهوري نظام سمبول دی دا زموږ د خلکو د آزادۍ، ورور ولۍ او برادرۍ سمبول دی. نو ای د وطن خوږ ځوانو او وروڼو، ای زړه او زړه پورو راځئ چې په صاف زړه او پوره صمیمیت یو بل ته لاس ورکړو او د جمهوریت د شمار په رڼا او د خپل دغه مقدس ملي بیرغ تر سیوري لاندې چې اوس زموږ په ټول هیواد کې رپول کیږي په هغه وړاندې او ته به لیدونکي عزم او خوشحالۍ او نیکمرغۍ او سر لوړۍ په لاره، په دغه ژوندانه او د ښه ښکلي صبا په لور پرمخ ولاړ شو.

تل دې وي افغانستان<br>
ژوندی دې وي جمهوریت<br>
تل او اوچت دې وي –<br>
د افغانستان بیرغ

(د پښتی د دوهم مخ پاته)

## د افغانستان د جمهوري دولت ملي بیرغ...

او د رنګ په څوله کې یې د جمهوري ګارډ د تشریفاتي قطعې د احترام مراتب او همدغه راز د مرکزي کمیټې د غړو، د کابینې د هیأت، د جمهوري اردو د جنرالانو او په کابل کې د اوسیدونکو پښتونستانیانو د احترام مراتب ومنل او د هغوی سره یې روغبړ وکړ.

د باختر خبریال علاوه کوي چې همدارنګه په کوټ کوټ کې د بیرغ د پورته کیدو مراسم د افغانستان د عامه ولس په بې ساري هرکلي او احساساتو سره ته ورسیدل.

۵۵مخ پاته

## داجهل...

چې افیشي «زربا کې» دې
دوستشي دورهو خوب کوه. او
دشپې دهغه سره مجلس کوه چې

خوګ دې دوستشي ورته خوشحال
ابا سفت کوه. چې د تنګی خاتکی وي
قیکه‌دا رورته‌وایه ګڼې حمدان

صاحب بې بوله. چې مهمند دې دو-
ستشي ملك صاحب بې بوله ودچا-
چی جاذه‌دارو ی د هغه غرڼی و-

سره وخوره، چې هشنګری دې دوست
شي کا کاخیلر پسې خبری کو اود
ګڼود بره‌ګو بحث ورسره کوه چې

کم عقل دې دوستشي دلیری یه
ورته سلام کوه.
چې معتبر دې دوستشي هغې ته

ورته‌دراغه چې ملنګ دې دوست-
شي د کچکول صفت بې کوه...
راشا په ستر ګو کی مې

خوب شه
زه شوګیرو د بیدا له
وهلی یمه

یادونه:
په پورتنی لیکنه کی صرف دایك دوه
په لحاظ کلمات زموږ په خاطر

معیار ی لیکنه کی اجول شو بدی
اورلو هیڅ مداخله نه ده شوې.

(۸۵مخ تاپه

## دریګویدو رمانی‌ته...

لفظ په سنسکر بت شبدار تهه
(دکشنری) کښې دمیلمه پالونکی
په معنی سره ضبط شوی دی حال
داچې دا لفظ په ریګوید کښې
د غوا دغوښو تهیه کوونکی
میزبان ته‌وایی اود عزت او وقار
خطاب دی. دجان یادوح لفظ
دهغه وخت په لغاتو کښې پرمخ
نښته وکه وی بیله دغه مفهوم
هغه بل مفهوم لری د «ایشور»
او «ناتهه» لفظونه خو په‌ریګوید
کښې ښځې ته دنی لیدل شوی
دا لفظو نه په ممکنه ده په
دا وروسته کښې و میدان ته
راغلی وی.

اریائی ښځو به وچا غلی یا
محترم ته د «کروسر بشتهه» لفظ
استعما لاوه د «شریمان» یا
«شریمتی» لفظ هم په ریګوید
کښې بیخی په نظر نه راځي. په‌ریګو کی
داهم راغلی دی چې اریائی
کیدل به پیدایش پوري تعلق نه
لري بلکه د «ګاتهری منتر» په
تلاوت سره هرڅوك ځان ته
داشرف حاصلو لای شي یعنې

د رشتینی عقیدې په حاصلو او
معصیت توری لیلی له هر چا هغه
اری کیدای سی او د آریائو ب

وبه ګرزی. لهدې منثرو هغه دا
واضح‌ستله شوه چې په آریائیانو
کښې نسلی امتیاز و نه پرمخ نه‌وه
اودا او صفی امتیاز و نه په‌دا وروسته

کښې پیدا شوې دی په‌ریګوید کښې
د «پروهت» دو ظیفې انجامو نکی
ته «برهمن» د حکومت و سنبالو نکی ته
«کشتری» وهغه چا ته چې آ یا نه وی
«ویش» او هغه چا چې «ګاتری منتر»

نه‌وی زده‌کړی ورته‌«شودر» وایی.

---

دطلوع څخه

### میکلانژ

هغه هنرمندچې دخپلی تابلو درسمولو
دپاره‌شل کاله په ځنځیرو داتو شاه بر تخته
څملي بدی.

فلورانس دهنری میرا ثو او هنر-
مندانو د پرورښت په لحاظ خورا زیات
شهرت لری هغه مهال چې د منځنیو پېړیو
له تیاره تیاره وڅخه دونساس لمر حرکت
شروع‌شو نوفلو رانس دهنری جنبش
یو لوی مرکز و.

میکلانژ و دتلی ایتا لوی مصور ساز او نقاش
په۱۴۷۵ کال کی په‌دغه ښار کی
وزېږیدی او د۸۹ کالو په عمر ئي له
دی فنا نړی نه سترګی پټی کړی.

میکلانژ هم نقاش و هم مجسمه
جوړو نکی. په‌مجسمه جوړولو کی دده
عالی شهکار و نه دحضرت عیسی (ع) او
بی بی مریمی مریری مجسمې دی او په
رسامی کی یې د (سستین) د کلیسا پرچت
دننه هغه تابلو ده چې دلی‌نه‌دااو ور څو
پیدا ښت په نامه یاد یږی.

وایې چې دا تابلو میکلانژ په شل
کاله په‌دې ډول رسم کړه چې دشاپر
تخته په ځنځیرو تو څملی بدی او کار به
ئی کاوه، څکه‌بل ډول بی لاس نه ورته
جوړیدی. د۵۰۰ آثار دونه معروف دی
چې هر کال په‌ملیونو ملیونو سیلانیان
دهغه ننداره کوی.

د مجلې د اداری له خوا:

# په کندهار کې د ذهني مسابقې هنري خاطره

د راډیو افغانستان د پېژندل شوو هنري پروګرامو څخه یو هم د ذهني مسابقې پروګرام دی چې د راډیو افغانستان ډېر شمیر علاقمندان د هغه سره دلچسپي ښکاره کوي.

د همدغه پروګرام په ولایاتو کې د لومړي ځل د پاره د کندهار په ارغوني تاریخي ښار کې ثبت سو

پروګرام د ښاغلي نبي پاکطین په وینا شروع او د ننداره چیانو په تودو احساساتو بدرقه سو. د دوی د تودو احساساتو د څرګندولو په باره کې د ظاهر هویدا د

جملې کافي ده چې ذکر یې کړه: «ستاسې ګرم احساسات پر ته له تشریفاتو په الفاظو کې نه ځایېږي څنګه چې تاسو زه حاضر یم چې ستاسې هر څه فرمایشونه ومنم».





## د ذهني مسابقې د کار نسرت یوه برخه

چې د هغه د ثبتېدو ځای د کندهار د سینما سالون و.

د دغه هنري پروګرام ننداره په دغه ارغوني ښار کې واقعاً بې سابقې وه. د سینما سالون کښته پورته بشاشي او باطراوته څېرې ښکارېدې. د یوې خوا ننداره چیانو خوشحاله ښکارېدل او د بلې خوا د سینما پر سټیج د هنرمندانو هنري څېرو د سینما فضا ته خاص

صمیمیت ور په برخه کړی و. د دغو هنري څېرو څخه ځینې را ته شناخته وې، لکه ظاهر هویدا، شمس الدین مسرور، میرمن قمر ګل، ګلزمان، استاد رفیق صادق

ښاغلی فضلي، میرمن ګلچین یار، عاقل شاپیماني، ښاغلی عبادي، د راډیو افغانستان نامتو نطاقان نبي پاکطین او نفیسه محمود. برعلاوه پر ذکر سوو کسانو ځینو نورو هنرمندانو هم برخه ارل.

د ذهني مسابقې پروګرام پر څو برخو وېشل سوی و. په هغه کې دوی کورنۍ د جایزې اخستلو د پاره

وړاندې سوي چې یوه د عظیمي او بله د حمیدي کورنۍ وه. برعلاوه ځینو کسانو په انفرادي ډول هم په دغه پروګرام کې برخه درلوده. د انفرادي کسانو څخه

د ارغوني اناد لیسې د یوولسمې ټولګې متعلمې پېغلې روح افزا یو امیګا ساعت په جایزه کې ترلاسه کې. د همدغه رنګه اکبر ایازي یو جوړه د عقاب بوټو،

احمد الله د مشرقي لیسې زده کوونکي د مېوو د اوبو استلو ماشین او د زینب د ښوونځي متعلمې پېغلې وجیهې د افغانستان بانک د سپما کتنا بچه وګټل

کوم شي چې دستاینې وړ ؤ هغه په ذهني مسابقه کې د ګډون کوونکو ګډون کول و، ځکه نو د غو کوونکو ګډون کوونکو په نسبت جایزې ورکول سوې. څو

څرنګه چې د ویل سوه د امسابقه په کندهار کې بې سابقې وه، نو د مسابقې ګډون کوونکي د هغه سره نا اشنا وه مګر بیا هم د دوی استعداد د ونه په ستاینه ارزي.

په دغه پروګرام کې د چاغلو فضلي، استاد رفيق صادق، عاقل شاه بیماني، ف. عبادي او میرمن ګلچین یارله خوا انقرو کونه هم تمثیل سو. د دې پروګرام په

ترڅ کو یو کانسرټ اجرا سو چې د ننداره چیانو له خوا د هغه تود استقبال وسو. په دې کانسرټ کې د «آسمان آبي» او «جانانه راسه» پارچې چې د لومړي ځل د پاره په



فضلي او رفيق صادق د تمثيل په وخت کې

کندهار کې وویل سوې، د تماشاچیانو د زیاتې علاقې وړ وګرځیدې.

بر سیره پر دا چې یو يې هنرمندانو، د کندهار محلي هنرمندانو هم په دې پروګرام کې برخه اخیستې وه.

چې د هغو څخه صمد رفيق د الیبرونې د لیسې د ۱۲ ټولګي زده کوونکي او عبدالرازق پښتون هم یو پارچه

تمثیل کې واقعاً خوندوروه، په تیره بیا د صمد رفيق د «شبنم دانې دانې» کومیکه سندره چې د هغه په اساسي یې بوسیټ پلاستیکي چپلي جایزه واخستل.

د غه رنګه ځینې محلي سندر غاړي لکه سید محمد، اغا محمد، ولي محمد او د معارف ځینو اماتورو هنرمندو زده کوونکو په خپلو سندرو محفل ته ګرم ساتلی ؤ.

د کندهاري هنرمندانو هنرنمایي د حاضرینو د زیاتې ستاینې وړ وګرځیدل. تر دې اندازې چې ظاهر هویدا وویل «که تاسې ما ته په کندهار کې د یوه

هنري تیاتر د جوړیدو وعده راکړئ، زه حاضریم چې خپلې ټولې غزلې تاسې ته واوروم»

ددې پروګرام په پای کې د کندهار د مینو د لیسې



د اسمان ابي د پارچې سندري غاړي ظاهر هویدا

د لیلیه سوې غامکي نکتایي کان هنرمندانو ته ور کول سوه او د هغو له خوا په ډیره خوښي ومنل سول.

د ذهني مسابقې پروګرام چې په ولایاتو کې د هنر د متوازن انکشاف په غرض او مړي ځل په کندهار کې اجرا سو تقریباً پنځه ساعته يې په بر کې وابول یعنې د ماز دیګر پر پنځه بجې شروع او د شپې پر لس بجې

«پاتې د پښتو پاڼه یم مخ کې»

د سردار شاه ترجمه او څېړنه:

# مارکو پولو د چین د خاقان په دربار کې

## د ده د سفر سړې او تودې

### (دریمه برخه)

د چین او برما ترمنځ د ختیځ والي چې د ډیل د جنګ ترمنځ تر وروسته د برما پاچا پیاده چین پر ځینو علاقو باندې حمله وکړه، چې په دې حمله کښې بیا بریالی نه شو او چینیو تلفات او ژیانونه ور ته ورسیدل

او د دې جنګ په نتیجه کې ؤ چې پخپله پاچا ودې ته مجبور شو چې د سلطنت څخه لاس واخلي او وتښتي

مګر د ولاخیل تصمیم نه ؤ عملي کړی چې د کوم ځا له خوا ژمر ورکړه شوه او مړ شو. د ده ترمرګه

وروسته د برما ملک ټول د منګولانو په لاس ورغی. مارکو پولو چې د خپله حمله ئې پخپله لیدلې ده د منګولي

عسکرو مهارت ته حیران شوی دی. دی وائي د دې ښار نیول منګولانو ته دومره آسان ؤ، چې حتی د دې ښار نیول

د زبردستو عسکرو په وسیله هم نه دی شوی بلکه هو ټنو عادي خلکو د ښار و نیوی. مارکو پولو د دې

جنګ تر خلاصیدو وروسته برما ته ولاړ او هغه ئې تر (میکانګ) پورې ورساوه په لاره کښې د ډیرو

تکالیفو سره مخامخ شو. هغه تو پولو له دې سفر څخه چه ژ ... نه-

لري. خو کله چې د برما ښار ته داخل ویې لیدل چې ښار بالکل بربوهوا ره سیمه باندې ودان

شوی ؤ. لوی لوی د کاڼو نه او بازارونه ئې لرل خلکو ئې ډیر لرم او بودا ئې مذهب وه. د دې

ښار څخه نود جنوب و خوا ته د- (یاګن) ښار پروت ؤ فاصله ئې د تګ په لحاظ ۱۵ ورځې وه چې

تقریباً ۳۵۰ میله کیدل، پولو به د ورځې ۲۳ میله لار طی کول. په دې لار کې پولو په زیاته اندازه

د وحشي حیواناتو څخه په تنګ- شوی دی په هرحال، د دې ځایه هم تیر شو او د یاګن ښار ئې و لیدی

چې د ډیری څخه معلومیدی او ډیر ځایسته ښار ؤ کله چې مارکو پولو ښار ته ننوتی و ئې لیدل چې ټول

خلکو ئې آرام او هوسا ژوند لري هر څه ور ته مهیا وه، خلکو ئې پرخپل مذهب ډیر ټینګ وه او

خپل معبدونه به ئې په سرو زرو باندې مزین کړی وه. لکه چې لیدل- کیده دوی د الی مناری دی چې

یوه ئې د ښا اصو سرو زرو څخه جوړ شوي او بله ئې د سپینو زرو وه

علاوه پر هغه ځینې نسور عجب ځایونه ئې درلودل چې حتی معتمدین او وپائیان (مارکو پولو او ده

ملګری) د هغه د لیدو څخه حیران پاته شوي دي مارکو پولو د دې سفر په ضمن کې ځینې نور ښایسته ښارونه

هم ولیدل. هغه چې د دولت له خوا استول شوی ؤ نو به والیانو او حکمرانانو دوی مراعات کاوه

په هر صورت دی یو خوشبخته او خوش چانسه سړی ؤ، هر څه چې ئې زړه غوښتل هغه ئې ولیدل. که څه هم نورو اروپائیانو پسله ده څخه د ده لار تعقیب کړل مګر له منځه ولاړل.

مارکو پولو له لوازې دا چې کوم ضرر ورته ونه رسیدی بلکه د یوه حکمران په صفت ئې حکومت هم وکې.

لنډه دا چې مارکو پولو هغه او ده د سفر چې قوبلای خان د ده ته امر کړی ؤ، پای ته ورساوه او پسله هغو کاله بیرته د چین د امپراطور دربار (پکنګ) ته ولاړه.

## چینایي کښتۍ

پوهېږو شیانو څخه چې مارکو
پولو د خاقان په ملک کې

دیدلي وه یو هم دا لوی او
وړې سمندري بېړۍ وې چې د هغه
وخت د شرایطو سره سم د ډېرو

عصري نقلیه وسیلو په ډول استعما
لیدی. چینایانو په هغه وخت کښې

ډېرې کښتیانې درلودې چې د هند

او ایران تر سواحلو پورې به ئې
تګ او راتګ کاوه که څه هم

دا کښتیانې تر ډېرو لیرې ځایو
پورې تللې مګر تر ایران پورې
لار د مغولانو تر بشپړ واک لاندې

وه او بیا له کومې بېرې به خلکو
پر دغه لار سفر کاوه.

په کښتیو کې به د ان ورځې
پشان قطب نماوې نصب شوې وې
او د سمندري ګرځو سره سم ئې
سفر کاوه.

هغه مشهور بندرونه چې
مارکو پولو اشاره ورته کړې ده
د (چون چاو) او (چنګ چاو)

بندرونه دي چې یو د بله نژدې
پراته وه. او تجارتي بندرونه
وه چې اکثره قیمتي شیان به له

دغو بندرو څخه تر لیرې آسیا او
افریقائي سواحلو پورې وړل
کیدل. تجارتي اجناس به زیاتره

جواهرات او مختلف قیمتي شیان
لکه وریښم، ادویه جات او داسې
نور شیان وه.

ذکر شوو بندرو سوق الجیشي
اهمیت هم درلودی چې د جنګ په
وخت کښې به ئې د ذکر شوو بندرو له

لارې د کښتیو په وسیله هوسا عسکر
استول کېدل. څرنګه چې یو وخت ئې
د جاپان سره جنګ و او له دغو

بندرو څخه ځلور زره جنګي
کښتۍ ئې د جاپان په لور ور
واستولې.

پولو وائي چې سفري کښتیانې
به ډېرې مستریح وې او د ان ورځې
پشان ئې د استراحت وسایل درلودل

کښتۍ ئې د صنوبر د لرګو څخه
جوړې شوې وې. هرې کښتۍ به ئې
زیات شمیر خونې یا کوټې درلودې

او هر سوداګر به د سفر په وخت
کې یوه کوټه اشغالوله او په ډېره
آرامۍ به ئې سفر کاوه

کښتۍ به دونه مقاومې وې چې څو په
ډېر وخت به هم نه سورۍ کیدې
او د نهنګانو د حملې په مقابل کې

به په‌رز دراز وسایلو سامبالي
سوې وې د لویو کښتیو د کار کوو-
نکو شمیر به ۳۰۰ کسو ته رسیدی

او لویو کښتیو به د استراحت پر
کوټو علاوه یو زیات شمیر نورې
کوټې هم درلودې چې د مسافرینو

تجارتي مالونه به پکښې خوندي
کیدل. په هره کښتۍ کې به زرو
کسانو سفر کاوه. بادوانونه ئې

له دوو برخو څخه جوړ شوي وه او
د څو کرېږ ځای ئې د هغه وخت جوړ
شوي بلا سټک استعمالاوه.

مخصوص رنګ به ئې درلودی. د کښتیو
پر څنګ باندې به د ډېرو کوچنۍ کښتۍ
مښتې وې، او څینې وخت که به باد نه و

نو د پاروګانو څخه به ئې کار اخستی.

کښتۍ والانو به د هغه تر ډی چې
حرکت وکړي د یو ښه فال د پاره یو کاغذ

باد په هوا کاوه که به چیری ژر هوا ته
پورته شو نو دوی به فکر کاوه چې سفر به
ژر او بې خطره پای ته ورسیږي.

یو بل اروپائې چې (جوردانس فرید)
نومیدې تر مارکو پولو وروسته لیکې چې
په چین کښې داسې سفري کښتۍ وې چې

په سوواتاقونه به ئې درلودل او زر نفره
به د کښتۍ کار کونکي وه د مسافرانو
شمیر به ئې څو سوه ژرو ته رسیدی. او بې

حده مالونه به ئې ځایول.

هر اتاق به ځان ته جلا تشناب درلود
د کښتۍ به هر کنج کې د ګلانو لپاره لوښي

لوښي ګلدانې ایښول شوي وې. چې مارکو
پولو پخپله په دې ډول کښتۍ کښې د وه
واره د قوبلای خان له خوا هند او ایران

ته استول شوی دی.

## سماترا ته د مارکو پولو سفر

مارکو پولو هغه وخت چې د قوبلای

خان له خوا د هند سفر ته وګمارل شو نو ده
کوښښ وکړ چې یوازې د آسیا جنوبي
او شرقي سیمې او د کوچین چین مناطق

وګوري نو هغه و چې د زیتون د بندر
څخه ئې د (تانګ کینګ) خوا ته حرکت
وکړ چې دده د هغه سفر ۱۵۰۰ میله لار

په بر کې وابول.

مارکو پولو د غه لار په دوی میاشتو
کښې و وهله او د (چامبا) د منطقې ته ئې

عمان ورساوه په دې منطقه کې
بیا مارکوپولو د یوې بېړۍ سره
مخامخ شو دا بېړۍ هغه جنګۍ وه چې
(جاپه) د عسکرو ترمنځ مېشتې وې
که څه هم په دې جنګ کې قوبلای
خان موفق نه شو خو ډېرې خرابۍ
یې پېښې کړې ډېر انسانان یې
ووژل- او د جاپان پاچاهۍ دې
ته اطاعت چې باید کاله ۲۰۰ فیلان
او یوه اندازه قیمتي ارګسي
د چینې په ډول د مغولي امپراطور-
ته ورکړي تر جنګ وروسته د
جاپان منطقه بېرته د هغې حکومت
په لاس ورغله.

له دغه ځایه مارکوپولو
د سیام د خلیج له لارې ځان ملایا ته
ورساوه چې دغه سیمه مارکوپولو
د (لوکاش) په نامه یاده کړې ده.
دا ځای بیا هغه د یوه ښار ترځنګه
پروت و چې د (لینګورد) په نامه
یادېدی. مارکوپولو د ملایا څخه
(لینګورد) ته او د هغه ځایه څخه بیا
د (اېلعاټنګ) ټاپو ته ور لاړ چې د
سنګاپور سره نږدې دی مګر دغو
جنګونو اعمله چې د ملایا د تصرف-
کولو په خاطر شوي وه مارکوپولو
ډېر ددې ځایه پېښو یاددښتې او
ځان یې پسله ډېرو سختیو او
سمندري طوفانو و سماترا ته
ورساوه چې په هغه وخت کې دا
سیمه د بېلو بېلو حکومتو څخه
جوړه-وې وه او ډول خلک یې
مسلمانان وه. مارکوپولو

سماترا په شمالي برخه کې توقف
وکړې د هغه ځای شهزاده ګرې خپله
خپلواکي تر لاسه کړې وه.
ددې ځایه پنځه میاشتې پاته شو
ځکه د موسمي طوفانونه کېدله یې
نه سوای کولای د سیلون خوا ته
چې د ده په ابت کې وه، ولاړ شي.
ده په سماترا کې پنځه میاشتې په
ډېر تکلیف تېرې کړې او ملګري
یې چې ۲۰۰۰ کسو ته رسېدل په یوه
ځنګله کښې واچول او د هاتو د پاره
یې ډېر ټګ او ارګو هغه خونې
جوړې کړې او د وحشي حیواناتو
او انسان خوړونکو له بېرې یې
دغې موضع ګانې هم جوړې کړې
ددې منطقو انسان خوړونکي وحشیان
په کله کله سره دافر لیدل او هر
څه چې به په مخ ورتله هغه به یې
خوړل. په هر ډول چې و پنځه میاشتې
په مارکوپولو باندې پدې ډول
تېرې شوې.

مارکوپولو د لومړي ځل
لپاره په سماترا کې د خرما د ونې
لیدلې د هغې د ونه ځای خلکو به
د خرما د درختو پلنګونه بړی کول
او یو قسم سپین رنګه مایع یې د هغو
څخه په لاس راوړل-چې د شرابو په
ډول ترا ستعمالول. د کوپړې
درخته چې مارکوپولو ته یو نوی-
شی وه یې دلته ولیدلې. دغه راز هم یې
څونې عجیب حیوانات لیدلي دي چې
شکل یې ګامېښې ته ورته او ښپې په-
یې د فیل غوندې وې په تندي کښې یې

د ګرګړن په شان یو ښکر درلود چې اکثر آ
په ښکار کېدل او ښکر ونه یې خارج
ته وړل کېدل- دا هم د مارکوپولو د پاره
یو نوی شی و چې تر اوسه یې ندی یې نه
و لیدلی- د هغه ځای خلکو به ورته ویل چې
دا حیوان د یرغوی د شامې حس لري او
ژر اهلي کېږي.
یو بل شی چې دده د پاره نوی و هغه
دا و چې خلکو هلته یو قسم درختې درلودې
چې د هغو څخه به یې یو ډول اوړه په لاس
راوړل او ډوډۍ به یې څېنې پخول
مارکوپولو پخپله د هغې ډوډۍ خوند
کتلی دی.
مارکوپولو پسله هغه یې بحري طوفانونه
آرام شول خپلو ملګرو ته یې د تګ امر
ورکړې- دوی د (او چین) تر ابناتیر
د بنګال خلیج ته داخل شول او د انکوبار
د ټاپوګانو خوا ته چې ان د (اندیمان)
د ټاپوګانو په نامه یادېږي ولاړل. ددې
ځای د خلکو وحشي ژوند درلود خو ډېر
اوسېدونکي یې بیا هندوچینیان وه چې
یو علیحده کشور یې درلودی- او
وظیفې یې د جواهراتو او طلا تجارت
و- ژوند یې ډېر د مقرراتو سره سم
او لږ څه بدوی و- ددې ټاپوګانو په بله
برخه کې بیا داسې خلکو ژوند کاوه چې
سو په ی د ډبرې عصر ته ورته وه- خلکو
به یې د حیواناتو غوندې په غارو کې
اوسېدل او لغ لېې ګرځېدل او د انسانانو
په خوړلو بې صرفه نه کول ډېره علاقه به
یې درلوده چې بیګانه خلک ونیسي او
وې خوري-مګر دوانه وه چې د خپلې قبیلې
په افرادو یې غرض نه کاوه. (نور بیا)

# جمهوری بیرغ

وياړي آسيا ته افغانان بيرغ ځليږي
ارمغان د جمهوري دي چې دنيا ته څرګنديږي

د استقلال د حريت دی — هم مومت هم موهڅت دی
افتخار مو د ملت دی — لوی وکم تول په نازيږي

شنه لمن تور يې کاکل دی — خو په زړه کې يې اورېل دی
پرتندی باندې يې ګل دی — چې د لمر په شان ځليږي

په نڅا او اهتزاز دی — د نسيم سره همراز دی
خو په زړه کې يې داراز دی — چې اولس په نور ويښيږي

داد حال په ژبه وايي — د اميد پيغام هم راوړي
د وطن په مخ ته بيايي — خو افغان قوم برياليږي

دغه مينه د آر ياده — د مير ويس او احمد شاه ده
د محمود خوږه روياده — چې اوس بيرته تازه کيږي

د نيکو مو دا وصيت دی — دا وطن زمونږ امانت دی
پوره پر هر چا يې خدمت دی — هيڅوک له غني خلاصيږي

---

(د ۲۷ مخ پاته)

## په کندهار کې د ذهني مسابقې...

په ډيره خوشحالي سره ته ورسيدې چې د هغه هنري خاطره به تل له مونږ سره ملګرې وي. د دې هنري پروګرام څخه يوه تلوسه چې زمونږ په زړو کې را پيدا سوه هغه په کندهار کې د يوه هنري تياتر د جوړيدو انديښنه ده. د دې کار اقدام د دې سيمې په هنري استعدادونو او هنرمندانو پوري اړه لري ځکه چې د جمهوري هنرپالونکې نظام په غلېدونکو پلوشو کې د هنر او ادب د انکشاف او پراختيا د پاره هر ډول زمينه برابره سوې ده.



عبدالصمد رفيق او عبدالرزاق پښتون ديوه ډرامې د تمثيل په وخت کې ليدل کيږي



ښاغلی فضلی او استاد رفیق صادق د کندهار په ذهنی مسابقه کی
دیوی هنری پارچی د تمثیل په حال کی لیدل کیږی

د کندهار دولتی مطبعه